بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# دافغانستان دغميزې معقول حل !

شک نشته چې دافغانستان د روان ناورين لا مل دامريکا په مشرۍ دناټو دعسکرو د نامعقول اونا موجه يرغل اودافغانستان دمشروع او قانوني حکومت (دافغانستان اسلامي امارت )پر خلاف ددې لوريوله عداوته ډک چلندو،داسلامي امارت دواک په کلونوکې چې امارت دخپل مشروعيت ټول ټول شروط پوره کړي وو،دهيواد دپلازمينې په ګډون دافغانستان پر زياته خاوره تسلط ، دخپل ولس ډاګيز ملاتړ ،د ملل متحد دمعقولواوهغو قراردادونواو تعاهداتوچې له مقدس شريعت سره په ټکر کې نه وه رعايت اونورهغه معيارونه چې له امله يې ديوه حکومت په حيث داسلامي امارت مشروعيت اودنړۍ دملتونوحقوقي ضمانت ترلاسه کيدای شو لا دمخه احتواء کړي وو،خوددې ټولوالتزاماتواو رعايتونوسربيره بيا هم نړيوال کفري بلاک اوددوئ ځيره خوروهيوادونواسلامي امارت ته ديوه مشروع حکومت په سترګه ونه کتل اونه يې تر پايه ترړول شوي حقوق بيرته ورکړل ،برعکس يې زمونږهيواد دنامعقولو وجوهاتوپربنسټ دباړودوپه لوخړوکې پټ ، اشغال اودبې ګناه افغان ولس لسګونه زره وګړي يې شهيدان ،معيوب ،زندانيان او ددوئ کورونه يې په کنډوالو بدل کړل .

اوس چې څه باندې دوولس کاله تيرشوي اوبهرنيانودخپلوعسکرو ډيری جنازې وړې ،مالي زيانونه يې وليدل اوپوځي ماته يې وخوړه ،نو «طوعا او کرها» يې داسلامي امارت په پوځي طاقت ،سياسي درايت او ولسي ملاتړ له اعتراف نه وروسته دسياسي حل په موخه داسلامي امارت دروازه وټکوله اوقطرکې يې دامارت دسياسي حضورلپاره په يوه ديپلوماتيک دفتر سلا وکړه ،اشغالګرچې په پوځي ډګرکې مات شول ،نودخپلې ابرومندانه وتنې لپاره يې دسياسي حل له لارې چارې دخپل اشغال خاتمه له ديپلوماتيکولاروممکن وګڼله !

که څه هم دداسې يوه نا معقول اشغال پر وړاندې مسلمان ولسونه دخپل نجات اوازادۍ لپاره له وسله وال جهاد او شهادت څخه په غيربله لاره نلري او ديوې سپيڅلې ديني فريضې په صفت يې پر اداکولوځانونه مکلف بولي ،خوچې مقابل لوری په سوله ايز وخبرواشغال پای ته رسوي اومذاکرات کوي، نومجاهدين بيا لکه دجهادي شهکاريوپه څير دې ته هم چمتو دي ،اوداصادقانه خبرې اترې دخپل دين ددوهم اصل په بنه پيژني «وان جنحوا للسلم فاجنح لها وتوکل على الله » القران ،همداسې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په لاس دمکې له مشر کانوسره د(حديبيې)تاريخي صلح ،هغه غښتلې

سوله ایز اصل دی چې ترقیامته پورې یې مسلمه امت دیوه نبوي سنت په صفت دخپلو شرطونو په پوره کولوسره پرځای کولای شي ،همداسې دبیت المقدس دفتحي تاریخي سوله ایزه معا هده چې داسلام ددوهم خلیفه حضرت عمر رضی الله عنه په لاس له نصاراووسره لاسلیک شوي داټول هغه اسلامي تعلیمات دي چې اسلامي امارت تـه ددې جرأت ورکولای شي چې داشغالګروسره داصولوپه رڼا کې خبرې وکړي او(داسلام دلواء)دهسکوالي په صورت کې دافغانستان غمیزې تـه یو معقول حل پیدا کړي ،داددې اثبات هم دی چې اسلامي امارت کـه داسلامي خاورې دخپلـواکۍ لپاره جهادي تګلاره پرمخ بوځي نوپه خبرو کې هم له چانه شاته ندی ،دادواړه هغه معقولې شرعي لارې دي چې داړتیـا او خپلـو شرطونودپوره کولو په صورت کې ترې ګټه اخستل کیدای شي .

دې وروستیو کې دناټوعسکروبرتانوي مرستیال( جنرال کارټر)خپل مشران پدې ملامت کړل چې ولې یې لس کاله مخکې لـه طالبانوسره سوله ونکړه !نوموړي جنرال ګـارډین ورځپـاڼې تـه وویـل چې طالبانوسره دخبرو فرصت مـو پـه (۲۰۰۲)زکال کې له لاسه ورکړی اوهغه وخت ورسره سوله کیدای شوه ،دده له نظره که په ۲۰۱۴زکال کې خارجي عسکر لـه افغانستانه ووځي نودکابل اوسنی رژیم به په ډیر لږوسیمو کنټرول ولري ............

ددې برتانوي جنرال له څرګندونوڅخه داسې جوتیږي، چې ددوئ یرغـل نـا معقـول اودوئ نـور دجنګ تـاب نلـري اوسولې ته ظاهرا ډیرلیوالـه دي، خـو مشـران یـې ورسـره غـدر کوي، چې دسولې بنـه مواقـع یـې لـه لاسـه وتلې او اوس چې مجاهدینوهیوادشموله جهادي پروسه پیل کـړي نـواوس بـه ددې اړتیـاوي چې دمجاهـدینو شـرطونه ومني اوهـم ډیـرې اندیښنې ورسره شته چې دبهرنیانوله وتلو وروسته به یې په ګوتوجوړه شوي اداره ډیـرژر راونغښتل شي او دکـومې بقـاء تضمین یې له چاسره نشته .خواسلامي امارت چې دخپل اصولي دریځ له امله نه پخوا دسوله ایزحل کوم تردیـد کـړی اونـه یـې اوس کـوي ،دادی ګـوروچې همـدا اشـغالګر دي چې دربـړې حـل نـه غـواړې اونـورهم دجګـړې دادامـې لاملونـه زیـږوي ،خواوس چې نوردخپلې فاحشې ماتې خوبونه ګوري، دامارت اصولیت ته په سلامي یې نورهمـدوئ دقضیـې سیاسـي حـل غواړي اود اشغال غروریې مقدس جهاد ته سلامي شوی ،اسلامي امارت چې دخپلواصولو له مخې داشغال خاتمه اودشـرعي نظـام نفاذ او دخپـل مسـلمان ولـس هوسـاینه دخبرولـومړنی شـرط بـولي اوپـدې اصـولوله هیڅاسـره سـودا نـه کـوي، نوپـه څرګندوټکیونږیوالوته وایوچې اسلامي امارت سره دافغانستان دکشالې دمعقول حـل یـوازې دوه لارې شـته لـومړی جهـاد چې همدا دمسلمه امت اوافغان ولس دعزت لاره بولې ،که مقابل لوری په صـادقانه ډول اشـغال پـای تـه رسـوي اودمجاهـد ولس مسلم دحریت حقونه نه تر پښولاندې کوي، نودشرعي احکامو په رڼا کې چې افغاني عنعنات هم احتواء کوي اسلامي امارت ددې غمیزې سوله ایزې خبرې اترې دوهم معقول حل بولي اوپـدې دواړو کې به داسلام ء لـواء اودافغـان ولـس شـمله هسکه ساتې ! انشاءالله تعالی

تبصره

# ملت مصر

## ومصائب دیمکراسی!

بتاریخ سوم ماه روان جولای سال جاری ۲۰۱۳ میلادی اردوی مصر به تحریک اجنبی ها رئیس جمهور منتخب مصر محترم محمد مرسی را با کودتای نظامی از قدرت خلع کرد، نه تنها اینکه اردو به رای ملت و قانون مصر احترامی قائل نگردید بلکه زندانها را از اعضای حکومت قانونی این کشور پر کرد ، رهبران تنظیمهای اسلامی بخصوص رهبران حزب آزادی و عدالت را تحت تعقیب قرار داد ، بر مظاهره کنندگان در گارد ریاست جمهوری در حالی حملات و فیرهای بی رحمانه ای انجام داد که انها در حال اقامهء نماز صبح بودند ! بشمول اطفال و زنان دها تن از انان را به شهادت رسانده و بیشتر از هزار تن دیگر را مجروح کرد ! این عملکرد غیر عادلانهء اردوی مصر تاکنون ادامه دارد.

بجای اینکه اردو در کنار حکومت قانونی و رئیس جمهور منتخب بایستد و جلو اغتشاش کنندگان را بگیرد ،برعکس بر علیه حکومت قانونی و رئیس جمهور منتخب اقدام نموده و به حمایت از سیکولار ها و لیبرالها پرداخت ! اردوی این کشور کودتای نظامی خویش را زیر نام قیام مردمی به انجام رسانید ، و در این راه از کمبود و نبود بصیرت سیاسی بعضی از شخصیت های سیاسی و دینی سوء استفاده کرد !

همانند دکتور احمد طیب شیخ محترم جامعهء ازهر و دیگر اشخاص روحانی را در این مصیبت ملی و تاریخی با خود شریک ساخته و از انها به عنوان مشروعیت دهندگان و شاهدان این کودتای نظامی استفاده کردند ! بدین ترتیب در سطح جهانی و خصوصا در دنیای اسلام زیان بزرگ قانونی و شرعی به حیثیت جهانی و اسلامی ازهر شریف وارد

گردید ! برای اینکه این حیثیت دوباره اعاده گردیده و صدمهء وارده جبران گردد ، باید در حمایت و طرفداری از حق شیخ شریف الازهر بایستد و از موقف کنونی خویش بصورت علنی اظهار پشیمانی نماید !

اردوی مصر همانند امریکا برای توجیه عملکرد غیر قانونی خویش به مخالفان کودتا کنونی القاب دهشت گرد ، تروریست و دشمنان وطن داده و رهبران گروه های اسلامی را به ایجاد فتنه، استفاده از اسلحه ، خونریزی و .... و.... متهم کردند ! حاکمان جهان غرب که دیموکراسی را بزرگترین دستآورد نظام های خویش میدانند ، انتخابات و حکومتهای منتخب را حق مسلم ملت ها می شمارند ، نه تنها اینکه بر جنازهء امید ها و آرزوهای ملت مصر اشک نریختند بلکه کودتای نظامی را راه چاره برای بیرون رفت این از اوضاع جاری دانستند !



اگر کمی آنطرف تر نگاه کنیم ، مشاهده می کنیم زمانی که تنظیمهای اسلامی در انتخابات الجزائر کامیابی کامل را در این کشور بدست اوردند ، بجای اینکه حکومت به انها سپرده شود ، آنها را به محابس و قبرستانها فرستادند ! در فلسطین زمانی که حزب اسلامی حماس در انتخابات کامیاب گردید ، هیچ یک انرا به رسمیت نشناخت ، بلکی مهر دهشت گردی را به انها وارد کردند ، همچنین در ترکیه زمانی که نجم الدین اربکان از طریق انتخابات قدرت را بدست گرفت ، بزور و با استفاده از قدرت از صحنه دور گردید ! و اینست اکنون در مصر حزب آزادی و عدالت در انتخابات کامیاب گردید ، مگر نگذاشتند که زمان تعیین شدهء قانونی خویش را تکمیل نماید.

از قدرت خلع کردن حکومت منتخب مصر بصورت غیر اخلاقی و غیر قانونی و عکس العمل کند جهانی ، نشان می دهد که آوازه های دیموکراسی و شعارهای انتخابات یک

پروپاگندای فریب دهنده است ، و زمانی مورد تائید و قبول قرار می گیرد که تمثیل کنندگان خواسته ها و اراده های اهداف غربی ها به قدرت برسند ، در حالی که حاکمیت و قدرت انها هم ریشه ملی دارد ، و هم حمایت غرب، مگر زمانی که در نتیجهء همین نظام غربگرا ، قوتهای اسلامی به کامیابی برسند ، نتیجتا انها نه کفایت و نه هم رضایت ملت را با خود دارند !



برای اینکه این مصیبت کنونی ملت مصر به پایان برسد ، باید هر زودتر به رئیس جمهور منتخب مصر محترم دکتور محمد مرسی قدرت و حاکمیت قانونی دوباره سپرده شود ، رهبران احزاب سیاسی از زندان رها گردند ، و از دستگیری اشخاص و افراد دیگر خودداری شود ، زیرا تاثیر و نتائیج منفی اینگونه اعمال نه اینکه کشور و ملت مصر را با نابسامانی های بسیاری روبرو خواهد کرد بلکه در منطقه و جهان و خصوصا بشمول کشور عزیز ما افغانستان و دیگر کشورهای اسلامی و ملت ها تاثیر بسیار منفی خواهد داشت ، زیرا مردم به ترک کشور مجبور خواهند شد و بدین ترتیب منطقه و جهان بسوی ناامنی و هرج و مرج سوق داده خواهد شد.

## دتعليم او تربيې کميسيون مسؤل : محترم مولوي محمد اقبال

لەمورچل سرەپەځانګړې مرکەکې :

# دښوونځيوسوځول، په نجونو تيزاب شيندل داسلامي امارت دپاليسئ خلاف عمل اوپه کلکه يې غندو!

درنو لوستو نکو داخل مو دمرکو په لړ کي دموضوع اهميت ته په کتو سره دتعليم او تربيې دکميسون دمشر الحاج محترم مو لوي محمد اقبال صاحب سره دتعليم ار تربيې دکميسون دفعاليتونو او نورو اړوند ه مو ضو عاتو په اړه ځا نګړې او هر اړ خيزه مرکه کړې چي ستا سو توجه ور ته را اړوو.

**پوښتـــنه** : ډير محترم مو لوي صاحب تاسو ته هرکلی وايو !

که له هرڅه وړاندې دمعارف کميسيون دتشکيلاتو په اړه معلومات راکړئ ، دغه راز ددې کميسيون د دندو په اړه هم که معلومات راسره شريک کړئ ؟

**ځـــواب** : الحمد لله وکفی والصلوة والسلام علی عباده الذين اصطفی امابعد فاعوذ بالله من الشيطن الرجيم يرفع الله الذين آمنو منکم والذين اوتوا العلم درجات ، صدق الله العظيم

له هرڅه وړاندې داسلامي امارت دمعارف کميسيون په استازيتوب تاسو او ټولو لوستونکو ته مسنونه تحيه السلام عليکم وړاندې کوم.

ستاسو دلومړنۍ پوښتنې په ځواب کې بايد ووايم چې داسلامي امارت دمعارف کميسيون تشکيلات په لاندې ډول دي.

دکميسيون عمومي رئيس ،دکميسيون اعضاء چې عبارت د(۲۳) نفرو څخه دي ،

اداري رئيس ، علمي بورډ ( علمي شورى ) چې په ( ۱۲ ) نفرو جيّدو علماوو مشتمل دى.

دغه راز دمعارف كميسيون په ټولو ولاياتوكې دتعليم اوتربيې رئيسان اوپه ټولو مفتوحه ولسواليو اوهغو ولسواليو كې چې دتعليم اوتربيې كارپكې روان ده دتعليم اوتربيې مديران لري چې ټول ولايتي رئيسان ( ۳۴ ) اوټول دولسواليو مديران (۳۰۸ ) نفره كېږي. اوهم دهر ولايت لپاره يويو تعليمي مرستيال مقرر شوى دى چې هغه هم (۳۴ ) نفره كېږي چې په دې توګه زموږ دفعالينو شمير سوونو ته رسيږي.

او دمعارف دكميسيون دلائحې له مخې زموږ دندې په لاندې ډول تشخيص شوي دي

۱- دكميسيون دضروري تشكيلاتو بشپړول.

۲- دابتدائي اولمړنيو زده كړو لپاره په كليوالي سيموكې كليوالي مدرسې او مكاتب جوړول.

۳- ددينې لوړو زده كړو لپاره ليليه مدارس اودرسونه جوړول.

۴- دقرآنكريم دقرائت ، تجويد اوحفظ لپاره دارالحفاظونه جوړول.

۵- دعصري زده كړو لپاره شرائط برابرول.

۶- دعالي تحصيلاتو دمؤسساتو نظارت كول.

۷- دجهاد ديتيمانو لپاره دارالا يتامونه جوړول.

۸- د إفتاء اوقضاء په برخه كې كورسونه جوړول.

**پوښتـــنه** : په تيرو څو كلونو كې دمعارف كميسيون دمهمو فعاليتونو په اړه كه معلومات راكړئ ؟

**ځـــواب** : تاسو پوهيږې چې موږ په ډيرو سختواو جګړ ايزو شرايطو كې قرار لرو ، چې له امله يې دمعارف كارونه له خنډونو او مشكلاتو سره مخ دي ، خو بيا هم موږ دالله تعالى شكر اداء كوو چې له شته امكاناتو په استفاده موږ تراوسه دمعارف په برخه كې ډير څه كړي چې ځيني فعاليتونه په لاندې توګه يادولاى شو .

## دكليوالي مدرسو په برخه كې

څرنګه چې زموږ اكثريت ملت په اطرافواوكليوالي سيموكې ژوند كوي اود ډېرو تعليمي اسانتياوو څخه بې برخې دى نودهغوى دكوچنيانو لپاره په خپلو كليو كې دابتدائي ،

ضروري ديني تعليماتو لپاره دکليوالي مدرسو جوړول دکميسيون له اهدافو څخه يو مهم هدف دی چې په لاندې ځانګړتياوو سره په دې برخه کې قدم اخيستل شوی دی !

الف: ددوی دتعليم لپاره دکليو امامان مؤظف شوې دي ترڅو په ورځ کې اقلاً له (۲ ) څخه تر (دوه نيم ) ساعته پورې دخپل کلي کوچنيانو ته په مسجد يا يو کورکې درس ووايي.

ب: ترڅو چې ددوی لپاره يو ټاکلی نصاب جوړېږي مروّج ديني مضامين لکه

قاعده ، قرآنکريم ، شروط الصلاة ، قدوري ، پنج ګنج او دمجاهدينو دوخت دمکاتبو د لمړنيو درېو صنفونو کتابونه ورته ويل کېږي.

ج: پورتني کتابونه او ورسره نورتعليمي مواد لکه قلم ، کتابچه وغيره دکميسيون لخوا ورته برابرېږي.

د : دهجرت په ديارکې هم کوشش روان دی ترڅو په کمپونو کې هم زموږ دمهاجرو کوچنيانو لپاره دتعليم زمينه برابره کړو.

هـ: ددغو کليوالي مدارسو لپاره دوخت اوشرائطو سره سم ددرېو کلونو يو نصاب جوړ شوی اوچاپ ته آماده دی.

**ددیني زده کړو ( ليليه مدارسو ) په برخه کې !**

الف: دمدارسو دښه تنظيم ، دتعليم اوتعلم دکيفيت دلوړوالي ، او دطالبانو داخلاقي معيارونو د برابر ولو په منظور په (۲۰ ) مادو کې يوه مسوّده دکميسون لخوا دمدارسو دمشورو اونظرياتو په پام کې نيولو سره ترتيب شوي اوټولو مدارسوته توزيع شوې چې ترعمل لاندې ده ، په دغه مسوده کې تعليمي کال ، دامتحاناتو وختونه ، دامتحاناتو نظم ، دطالبانو لپاره تعليمي اواخلاقي اصول ، دطالبانو تر منځ دتقريري اوتعليمي مُسابقې مقررات روښانه شوې دي.

ب: دپورته مسودې په رڼاکې سږکال په ۲/۵/۴ ربيع الثاني / ۱۴۳۴ هـ ق چې د۱۳۹۱ هـ ش کال ددلوې /۲۲/ ۲۷/۲۸ چې د ۲۰۱۳ ميلادي کال دفروري د۱۴/ ۱۲/۱۵ سره سمون خوري دشپږمې درجې دطالبانو ترمنځ دډېرو زياتو مدارسو په سطح تقريري مقابله اومسابقه وشوه چې الحمدلله په پوره نظم اوترتيب اوبرياليتوب سره ترسره شوه.

اوښه په زړه پورې تقریرونه په عربي ، فارسي او پښتو ژبوکې وشول چې بیا ښو نمرو اخیستونکو طالبانو ته او هم ټاکلي ممتحنه هیئت ته په زړه پورې انعامونه ورکړل شول.

ج: دعلمي بوډ (علمي شورى ) لخوا ټولو دیني مدارسو لپاره دډېرغور اوڅېړنو وروسته د ۱۴۳۳ هـ ق کال درجب المرجب دمیاشتې په **۲۵** نیټه چې د۱۳۹۱ هـ ش کال دجوزا دمیاشتې ، **۲۲**نېټې سره سمون خوري دټولو دیني مدارسو لپاره یوجامع اومعیاري واحد تعلیمي نصاب ترتیب اوتصویب شو چې په ابتدائیه ، متوسطه ، اویوولسو درجو مشتمل دی اودوخت اوضرورت سره سم مضامین پکې ځای شوي چې دغه نصاب سمدلاسه ټولو مدارسو ته توزیع اودمدارسو او استاذانو لخوا ښه استقبال شو چې پدې لومړي کال کې ترډېره حده عملي شو.

د : په کال کې درې امتحانه واخیستل شول سه ماهي ، ششماهي اوسالانه چې په سالانه امتحان کې دلوې دورې ( دوره حدیث ) او وړې دورې (موقوف علیه ) دفارغینو څخه په مشترک ډول دمتحدو پرچو په شکل کې امتحان واخیستل شو ، سره له دې چې دا لومړی ځل اولومړی کال وو اومشکلات هم زیات وو په راتلونکي کې به دا بهیر نور هم ښه کیږي ، کوم فارغینو چې په امتحان کې برخه اخیستې کمیسیون په پام کې لري چې هغوی ته رسمي اسناد ورکړي.

دیني لیلیه مدرسې چې دتل لپاره زموږ دملک یوه علمي سرمایه ده اودنېکبختۍ خبره داده چې دغه لړۍ همېشه زمونږ دملت اوعامه مسلمانانو ترحمایې لاندې را روانه ده او اوس هم په دغه سختو امنیتي شرائطو کې دحالاتو په تناسب دیني لیلیه مدرسې او درسونه موجود دي اوهم دهجرت په کمپونو کې زموږ دبا احساسه اوبادرکه علماء کرامو په زیار اوکوشش کافي مقدار کې مدارس تأسیس شوي اوپه فعالیت لګیادي چې ددغو دښه انسجام اوتنظیم پخاطر لاندې اقدامات ترسره شوې دي.

الف: دکمیسیون لخوا وخت په وخت دمدارسو مسئولین اومهتممین راغوښتل کېږي او دتعلیمي نظام دبهبود اوترقۍ اوپدې لارکې دپرتو ستونزو دحل په خاطر ورسره ګډې غونډې جوړېږي.

ب: ددیني لیلیه مدارسو دنظارت اوکنترول لپاره یو علمي مجلس(علمي شورى ) چې په ( ۱۲ ) نفرو عمده اوجیدو علماوو اوشیوخو مشتمل دی تأسیس شوی ترڅو وخت په وخت دکمیسیون سره په همکارۍ کې په دغو مدارسو کې دوضع شوو اصولو اومقرراتو اوهم دمدارسو پرنصاب نظارت اوکتنه وکړي.

ج: په مختلفو سيموکې دمدارسو دښه تنظيم اوپوره مراقبت په منظور دعلماوو څخه نمايندګان ټاکل شوې دي ترڅو دمربوطه سيمې دمدارسو نظارت وکړي اودضرورت په وخت کې دمدرسو دمهتممينو سره غونډې وکړي.

## دعصري تعليمي ادارو په برخه کې

دعصري زده کړو لپاره هم کوشش شروع ده ترڅو دامکاناتو ترحده ښه شرائط ورته برابر کړو اودموجوده مکاتبو پوره نظارت کيږي البته ددغو عصري ادارو اومکاتبو لپاره پر نولس (۱۹) مادويوه مسوده ترتيب شوې ترڅو دهغې په رڼاکې دمکاتبو هراړخيز نظارت وشي. دمثال په توګه.

۱- دمکاتبو نصاب هروخت کنترولېږي اودا دعلماوو ديوهيئت لخوا کتل شوي اوپه هغوکې لازم اصلاحات راوستل شوي اودغه داصلاحاتو اوراق تقريباً دټولو مکاتبو ادارو ته رسول شوی دی چې دمسئولو اشخاصو لخوا يې نظارت اوتعقيب کېږي.

۲- تعليمي پروګرام دمکاتبو لپاره دکميسيون لخوا ترتيب شوی ، ديني اوضروري مضامينو ته زيات وخت ورکول شوی اوپه تقسيم اوقات کې رامخته شوي دي.

۳- په هرمکتب کې دضرورت په اندازه ديني علماء اومجوّد قاريان مؤظف شوي ترڅو ديني مضامين اوقرآنکريم دهغوی لخوا تعليم شي.

۴- دشاګردانو داخلاقي اوتربيتي معيارونو دلوړوالي په منظور ورځني ، پنځلس ورځنی اوڅلور مياشتنی سمينارونه اوکنفرانسونه په نظرکې نيول شوې دي چې دديني علماوو لخوا ورته ديني روزنه ورکول کېږي.

۵- نامطلوبه اشخاص چې داسلامي عقائدو اومقرراتو پرخلاف دغلامې ادارې سره سياسي او مفکوروي روابط لري نظارت کېږي دتشخيص په صورت کې له اداري څخه ايستل کېږي.

۶- غيرشرعي اوغير افغاني يونيفارم مطلقاً بند دي.

۷- ګوندي اوتنظيمي فعاليتونه چې دمسلمانانو په منځ کې تفرق راولي مطلقاً بند دي.

۸- داسلامی تعليم کتابونه چې عقيدوي او فقهي مسائل احتوا کوي په ټولو ټولګيو کې لازمي ګرځول شوي دي

۹- دعالي تحصيلاتو لپاره چې کوم شاګردان پوهنتونونو ته مراجعه کوي هغوی ته ابلاغ کېږي چې دخارجي دولتونو لخوا په جوړ شويو پوهنتونونو اوحربي ښوونځيو اوپوليسو اکادمي کې شموليت ممنوع دی.

### د دارالحفاظونو په برخه کې.

د دارالحفاظونو په جوړولو کې هم دامکاناتو ترحده کوشش روان دی خود موجوده دارالحفاظونو لپاره په نظرکې دي ترڅو له يوې خوا دهغولپاره يو په زړه پورې نصاب ترتيب کړو. اوله بلې خوا دامتحاناتولپاره يومنظم پروګرام جوړاوفارغينولپاره يې ښه معياري سندبرابر کړو. ان شاء الله.

۱۰- دعالي تحصيلاتو دمؤسساتو اوپوهنتونونو دنظارت لپاره مشخصه اداره موجوده ده چې دهغې لخوا يې نظارت کېږي اوهروخت ورسره په رابطه کې ده کوښښ کوو ترڅو دغه لړۍ او رابطه نوره هم منظمه اوګړندۍ کړو.

### دجهاد ديتيمانو په برخه کې!

۱۱ـ دجهاد ديتيمانو لپاره په موجوده وخت کې دوه دارالايتامونه لرو چې د(۲۰۰) په شاوخوا کې يتيمان پکې زده کړې کوي ددوی لپاره ښه صالح او پرهيزګاره استادان ټاکل شوي ددوی دتعليم څخه علاوه ددوی داخلاقي تربيې لپاره هم پوره انتظام شوی اوپوره نظارت يې کېږي ، ددې څخه علاوه ددوی خوراک ، پوشاک ، اونورټول ضرورتونه يې کميسيون په غاړه اخيستي دي.

په راتلونکې کې کوښښ کوو که ممکن وو دغه دارالايتامونه نور هم دضرورت په اندازه ډېرکړو.

۱۲ـ د إفتاء اوقضاء په برخه کې هم موږ وعده کړې اوکوښښ کوو ترڅو په لوړه سطحه دتخصص ښه معياري کورسونه جوړ کړو اونامتو اوجيد علماء کرام داستادانو په حيث ورته وټاکو چې دغه کاربه هم زموږ دټولنې عمده علمي مشکلات اونيمګړتياوې رفع کړي

**پوښتــــنه** : دښمن هڅه کوي دمعارف له سيستم نه په استفاده دافغانستان نوی نسل ګمراه کړي او له همدې امله يې په نوي نصاب کې ځيني غلط افکار ځای په ځای کړي ، ددې توطيې په شنډولو کې دمعارف کميسيون تراوسه کوم ګامونه اخيستي دي ؟

**ځـــــواب** : پـه دې اړه هـم مـونږ مخکې اشـاره وکړه چې دښـونځيو پـه نصاب کې دښمن هڅه کوي چې په ډېرمرموز اومکارانه ډول داسې مضامين پکې ځـاى پـه ځـاى کـړي ترڅو شاګردان بې لارې اوذهنيت يې ورخراب کړي خودغه نصاب ترجدي څارنې لاندې دي اوهر وخت يې داصلاح لپاره دفني اومسلکي علماوو هيئت ټاکل کېږي ترڅو هغه خرافات تشخيص اومحوه کړي او دموضوع اصلي تعبير داسلامي اصولو پـه چوکاټ کې روښانه کړي چې اوس هم دغه داصلاح پاڼې دسږ کال لپاره دټولو مکاتبو اداروته رسولى شوې دي اودمسئولو کسانولخوا يې پوره تعقيب کېږي.

**پوښتـــــنه** : کله ناکله دهيواد پـه مختلفو سيمو کې ښوونځي سوزول کيږي ، يا دښوونځيو نجونې مسموميږي او يا هم تيزاب ورباندې شيندل کيږي ، ستاسو پـه نظر دا کارونه څوک کوي ؟

**ځـــــواب** : دښونځيو سوځول اويا دښـوونځيو پـه نجونو تيزاب شيندل اويا يې مسموول داسلامي امارت دپاليسيو خلاف يو عمل دى اوهروخت يې دغه کارونه غندلي اورد کړې دي زمونږ دايقين دى چې دغـه ډول کارونـه داسلامي امـارت ددښمنانو اودلاس پوڅي اداري کارده چې پدې اړه اسناد هم پـه مطبوعـاتو کې خپاره شوې دي ترڅو پـه دې کارسره داسلامي امارت په ضد ديوې تبليغاتي حربې په توګه استفاده وکړي.

**پوښتـــــنه** : دښمن تور لګوي چې مجاهدين دمعـارف لـه مسـئلې څخه سياسي او تبليغاتي استفاده کوي ، او له همدې امله کله ناکله دهيواد په مختلفو سيمو کې ښوونځي تړل کيږي ، ددې مسئلې حقيقت څه دى ؟

**ځـــــواب** : مونږ مخکې روښانه کړه چې اسلامي امارت کوښښ کوي ترڅو ديني اوعصري علوموتـه وده ورکـړي اسلامي امـارت دتعلـيم اوتربيې کميسـيون دښـوونځيو نظارت کوي خوتړي يې نـه بلکـه دښـمن پـه ځينو ځـايونوکې داسې يو عمـل تـه لاس اچوي ترڅو ښوونځي بند شي اوبيا د تبليغاتي وسيلې په توګه ورڅخه استفاده وکړي .

**پوښتـــــنه** : دمعارف کميسيون دکار په وړاندې عمده ستونزې کومې دي ؟

**ځـــــواب** : دتعليم اوتربيې په وړاندې عمده ستونزې زمونږ په ملک کې ددښمنانو ديرغل په سبب سخت امنيتي شرائط، اودمالي امکاناتو کمبود دي.

**پوښتـــنه** : د تعلیم او تعلم په باره کې د اسلامي امارت رسمي پالیسي څه ده ، په دې اړه که معلومات را کړئ ؟

**ځـــواب** : د تعلیم او تعلم په اړه د اسلامي امارت پالیسي ډېره روښانه او واضح ده لکه څنګه چې اسلامي امارت پخپله یوه علمي ټولنه ده نو ځکه غواړي زموږ د ملت هرفرد او وګړی د علم او پوهې له نعمت څخه برخمن او د علم رڼا د ملک هر ګوټ ته ورسوي چې د همدې هدف لپاره یې د تعلیم او تربیې کمیسیون تأسیس کړي ترڅو له دې لارې د علم او پوهې د ترویجولو لپاره ښه او مؤثر خدمت ترسره کړي.

**پوښتـــنه** :له محصلینو او دهیواد دښاري سیمو له تعلیمي ادارو سره مو رابطې څنګه دي؟

**ځـــواب** : افغاني محصلین چې زموږ وروڼه او اولادونه دي په هره اداره او هرځای کې چې وي د حالا تو او شرائطو په تناسب د امکان ترحده مونږ خپل روابط ورسره ساتو او وخت په وخت موږ دوی ته د اسلام د اصولو په رڼا کې د اسلامي امارت پالیسي ځرګندوو تر څو د یهودو او نصاراوو او نورو دښمنانو د دسیسو ښکار نشي او د خپلو اسلامي او افغاني معیارونو دفاع وکړي ، کوښښ کوو چې رابطې نورې هم ښې ، منظمې او ګړندی کړو.

**پوښتـــنه** : که د معارف کمیسیون د مسؤل په حیث کوم پیغام لرئ ، هیله ده را سره شریک یې کړئ ، ترڅو یې تر لوستونکو ورسوو .

**ځـــواب** : د تعلیم او تربیې د مسئول په حیث زما پیغام دادی چې دهیواد هروګړی باید د تعلیم او تعلم په لارکې زموږ سره هر راز مرسته او همکاري وکړي !هغه که د مشورې له لارې وي او که د تعلیمي موادو او مالي امکاناتو له لارې او هم باید د دښمنانو په تبلیغاتو دوکه نشي، د دښمن د دسیسو مخه ونیسي خپل اولادونه تعلیمي اداروته سوق کړي ، زموږ دولایاتو او ولسوالیو مسئولینو سره همکاري وکړي ، او له مجاهدینو څخه موهم هیله ده چې په دې اړه زموږ سره خپله مرسته ونه سپموي ، او د ټولو علماوو او مسلکي اشخاصو څخه هم هیله کوو ترڅو د یوه سالم معارف د نورښه تنظیم او بهبود لپاره لازمې مشورې زموږ سره شریکې کړي ، پوره همکاري وکړي ، د یهودو او نصاراوو او نورو کفري کړیو د دسیسو مخه ونیسي او خپل ملت په دې اړه متنبه او باخبره وساتي.

# اوکراین:

**دعبید تنویر ژباړه :**

اوکراین دوسعت په لحاظ له روسي څخه ورسته داروپايي ټولني دویم لوی هیواد شمیرل کیږي ، دغه هیواد دتاریخ په اوږدوکې دبیلابیلو جګړو اوشخړوپه پایله کې تجزیه اودمختلفو هیوادولکه لهستان اوروسیي ترکنټرول اوسلطې لاندې راغلی

د۱۹۱۷کال یعنې داکتوبر له انقلاب ورسته اوکراین دپخواني شوروي اتحاد( سوسیالیستي ) لومه ګیراوجزیې وګڼل شو، تردې چې د۱۹۹۱کال د۸ میاشتې په ۲۴ نیټه کله چې شوروي اتحادونړیداوکراین دیوه خپلواک هیواد په توګه خپل موجودیت اعلان کړ.

اوکراین په هغه مهال چې دشوروي اتحادترسلطې لاندې هم وخوپه ملګروملتونوکې یې دیوه مستقل هیوادپه توګه دیوې رایې حق له ځان سره خوندي ساتلی وو، نوموړی هیواددشوروي اتحادیوله هغوڅلورمهمو ارکانوڅخه شمیرل کیده چې هم یې دشوروي په تاسیس اوهم یې په انحلال کې کارنده رول درلود.

دیادوني وړده چې دشوروي اتحادله ړنګیدووروسته اوکراین ۷۸۰,۰۰۰ سرتیري درلودل اوپه نړۍ کې دوسلواواتومي ځواک له مخې دریم هیوادبلل کیده ، خوپه ۱۹۹۲ کال دمی په میاشت کې یې له روسیي سره دیوه تړون له مخې خپلې ټولې اتومي اومهمي وسلې روسیي ته وسپارلې اوپه نړۍ کې رسماځان له اتومي اوممنوعه وسلوڅخه خالي اوخلاص هیواداعلان کړ

## داوکراین بیرغ :

داوکراین بیرغ په ۲ رنګونوباندې مشتمل دی پورته حصه یې شین ابي اولاندې برخه کې زیړ دي ، ویل کیږي چې ابي رنګ دابو اوزیړ داوراویادغنمومفهوم ورکوي

## داوکراین مساحت اوجغرافیه :

اوکراین چې یوهمواره هیوادده اوزیاتره سیمې یې جلګه یزې دي ، ۲۰۳۷۰۰ کیلو متر مربع مساحت لري ، محلي نوم یې (آناوکراین ) دی د ( اوکرائین ) په تلفظ سره چې معنادورستي قلمرواو سرحدلري .

**داوکراین نفوس :**

داوکراین دوګړوشمیره د۹۲ څخه تر۹۵ کلونوپوري ۵۲ میلونه تنه ښوول شوي ، په ۱۳۸۰ لمریزکال کې داوکراین دنفوسوشمیره منفي وه یاني د۴۸ میلونوپه شاوخواکې حساب شوي ، په دغه سرشمیرنه کې ۵۴فیصده ښځي او۴۲ فیصده نارینه یادشوي ، دارنګه ۳۲ میلونه اوکرایني وګړي په ښارونوکې او۱۲میلونه په لیري پرتوسیموکې میشت بلل شوي ، پلازمینه یې دکیف ښاردی چې ۲/۵ میلونه استوګن اوښاریان لري.

**داوکراین موسم :**

داوکراین شمال یخ اوجنوب یې معتدله هوالري ، دکیف ښارځمکه په کال کې له۲ څخه تر۳ میاشتوپوري په بشپړډول یخک وي

**داوکراین مهم رودونه :**

اوکراین ګڼ رودونه لري چې مهم یې ( دینپر، دونتس وبوګ ) دي ، ددینپررود دروسیې اوبلاروسي له غرونوسرچینه اخلي دغه راز دینپرله ولګااودانوب څخه ورسته داروپاله سترورودونوګڼل کیږي ، دینپردکال په یخومیاشتوکې نیږدې ۳ میاشتې منجمدوي ، په همدې ډول له دینپرڅخه دبریښناپه برخه کې هم لویه استفاده کیږي اوځوداني داوبوبندونه ورته جوړشوي

**داوکراین دخلکو نژاد :**

اوکراین داسلاوشرقي له نژادونوڅخه جوړدي اوددغه هیواد۷۳ فیصده تشکیلوي ، له هغه ورسته روسی نژاد په دوهم کتارکې راځي ، ویل کیږي چې په اوکراین کې ۵۰۰زره یهودان اوسیږي چې داوکراین دجمعیت۱فیصد تشکیلوي ، نورمیشت وګړي بلاروسیان ، ملداویان ، لهستانیان ، مجاریان ، یونانیان ، رومانیان اوتارتاریان دي

**داوکراین ملي ژبه :**

داوکراین دخلکوژبه داسلاوشرقي څخه جوړه اوروسی ژبی ته ډیرورته والی لري ، داوکرایني ژبي الفبااوروسيي ژبې الفباګډ مشترکات اوتلفظات لري اوډیرلږ تفاوت لري

**داوکراین مذهب :**

د۹۸۸ میلادي کال پوري داوکراین وګړي ترډیره بریده بت پرسته وو ، خو د( ولادیمیرپرنس ) په مرسته اوکرائينانو له بت پرستی څخه مخ واړاوه اومسیحیان شول ، په کال ۱۰۵۴کې هغه مهال چې دروم پاپ دارتدوکس مذهب ته واوړید او منحرف شو اوله امله یې ( اوکراین ، روسیه اوبلاروس ) هم له مسحیت څخه دارتدوکس پیروي ته مخ واړاوه ،اوکرایني وګړي هم له هماغه وخته دارتدوکس کلیسا پیروان دي

**په اوکراین کې مسلمانان :**

که څه هم په رسمي ډول اوداوکراین دنفوسو په سرشمیرنه کې مسلمانان نه یادیږي ، خوتقریبي ارقام دادي چې اوکراین څه باندي ۲ میلونه مسلمانان لري چې زیاتره یې دکریمه نومي جزیري په ګردچارپیرکې میشت دي ، اوکراین ته داسلام مقدس دین دعثماني خلافت په مهال رارسیدلی دي ، دیادونې وړده چې مسلمانان اوس هم په اوکراین کې دجوماتونوله کمبودسره مخ دي ، صرف دکیف په ښارکې یولوی جومات دجوړیدو اوتکمیل په حال کې لیدل کیږي

**داوکراین هیوادولایتونه :**

دویش په لحاظ اوکراین په عین حال کې په یوخودمختاره جمهوریت ( کریمه ) سربیره نور ۲۴ ولایتونه په تشکیل کې لري

**داوکراین طبعي زیرمي :**

دزغالواو وسپني ډبري ، ګچ ، مالګه ، دمرمرو ډبري او دفسفرمعدني زخیري هغه سرشاره طبعي زیرمي دي چې اوکراین یې دهیواد په بیلابیلوبرخوکې لري اوپه کرهنه سربیره یې دا اقتصادهمدغه بنیادي اومهمي سرچيني بلل کیږي.

# خواجه رواش کې فدایانو څه ولیدل؟!!

بت شکن

لومړی مو د خپل مورچل لپاره د خواجه رواش د هوایي میدان شمال ته دوه نوې جوړیدونکې بیلډینګونه انتخاب کړل، خو د هغه ځای خلکو چې غالبا د ګوډاګی اداري حامیان او د شمالي جنګ سالار پلویان به وو، راسره هوکړه ونه کړه، بیا مو پر خدای ج توکل وکړ او یو بیلډنګ چې نوی جوړیده خوښ موکړ، له دوه اوونیو پر له پسې څار چې مو د ټیکسي دیوه ډرایور په بڼه کاوه، دا سیمه څارله او فدایي مجاهدین مې هم پرې ګرځول، تر څو بیا د برید پر وخت خپل هدف غلط نکړي، پلان مو طرح کړ او سبا ورځ سهار څلور بجې مو د فدایي برید لپاره وخت وټاکه، چې فدایان باید پدې وخت چې لاهم د شپې تیاره خپره وي، د میدان څنډو ته ورسوم، له خپل مرکز نه مو دیوې مزدالاری په توسط چې له بارود ډکه وه او یوه کرولا ډوله موټر چې فدایي مجاهدین پکې له بهرني یونیفارم سره ناست وو، د خپل هدف په لوري حرکت وکړ، له ټولو کمربندونو او امنیتي ځنځیرونو نه تیر شو، خو چې میدان ته ورنږدې کیدو قسمت ته ګوره چې مزدالاری خرابه شوه او چې مو هر څه پرې وکړل، مخکې نه تله، هک پک حیران شو، چې ورځ هم شوه او په سمه لویه لاره مو له بارودو ډک موټر خراب شو، څښتن تعالی د لمر دوړانګو له خپریدو سره جوخت جوړه کړه او بیرته خپل مرکز ته نهیلي او ستومانه ستانه شو، ګوره چې ددې کوریوه ماشوم په لاس کې دهشتاد؟ ستنه ده او مونږ ته یې راکړه، مونږ چې فدایانو ته د برید لپاره دوه میله هشتاد؟ چمتو کړي وواو د شپې مو پاک او غوړ کړل، ددې دواړو نه ستنې لویدلې وي، مونږ پوه شو چې دا ددې فدایانو د کرامت بیلګه ده، چې مزدالاری یې لاره کې خرابه او ګټه پرې دامرتب شوه، چې وسله مو بشپړ مرمت شوه، که همداسې بې له سوزن یا ستنې نه مورچل ته ختلی وی حمله به ضرور ناکامه وی، خو الله ج راسره دا مدد هم وکړاو په پوره اطمینان سره سبا د برید لپاره چمتو شو، قاري ګل محمد چې د خواجه رواش د برید تنظیمونکی او خورا فعال مجاهد دی، وایي چې د هرې ورځې په تیریدو سره به راته کار اسانیده او الله ج به راته لارې چارې اسانولې، هغه سختی چې مونن محسوسولې سبا د برید په

ورځ بیا نوي اوړه لوړه حوصله مې فدایان دمیدان څنډوته ورسول ،قاري ګل محمد چې آمر صیب هم ورسره و، دیوه فدایي دخوب عجیبه منظره داسې راته بیان کړه چې : ددې برید نه مخکې د(علي اکبر) په نوم یوه یوه فدایي داستخارې نه وروسته خوب کې حضرت عیسی علیه السلام وکوت ،چې سباته ورسره په عملیاتوکې برخه اخلې او له فدایانوسره په بریدکې شریک دی ،چې دې خوب فدایان نورهم وهڅول اودیوې متوقع فتحې اوبرې هیلې یې لاړسې تاندې شوې ،شپه په یوه عجیب کیفیت کې سبا شوه ،سبامې بیا له ځانه سره په همدې مزدا لاری او کرولاډوله موټرکې شپږتنه فدایان او ورسره ددوئ وسلې اوړه منونو بارودو جوړه شوی لاری دهدف په لورې وخوځوله ،داځل په ډېره اسانی سره هماغه دوونویو جوړیدونکیو بیلډینګونو ته ورورسیدو اوفدایان درې یوه اودرې بل بیلډنګ ته پورته شول ،ددوئ سوق او لارښوونه چې زما پر غاړه وه ،دطرح شوې پلان خلاف ورسره تر بیلډنګونو پورې لاړم ،دوئ مې برید ته دپلان سره سم اماده او زړه ورته شاوخوا کې اوختم راوختم ،دانو د(۲۰۱۲) زکال دجون دمیاشتې (۱۰)نیټه دسه شنبه ورځ وه ،دپلان سره سم فدایانو برید دسهار مهال څلور بجې پیل او دغرمې تر لسو بجوپورې یې وغځاوه ،چې پنځه نیم ساعته جګړه یې له صلیبي دښمن سره وکړه ،

دپلان سره سم یې لومړی دهوایي ډګرشمال ته هغه دوه برجونه ونړول، چې ددې میدان امنیت یې ټینګ کړی و ،اوبیا یې پرهغو الوتکو بریدونه وکړل ،چې دمیدان شمالي څنډه کې ولاړې وې او دیرغلګرو اکمالات یې کول ،شپږ واړوفدایانو ښه په زړه پنځه نیم ساعته یرغلګر دښمن تر اوړلاندې ونیول ،او ځمکه یې پرې سره کړه ،چې پایله کې یې (۱۵)اکمالاتي الوتکې ،(۲)بکتربند موټر،(٦)هغه بې پیلوټه الوتکې چې تر یوه لوی ترپال لاندې ساتل کیدې ،(۱۰) چینوک هلیکوپترې ،(۴)امنیتي پوستې اوددوئ دتیلو لویې سترې ذخیرې له منځه لاړې ،دجګړې په جریان کې فدایي مجاهدینوچې شیبه په شیبه راته ددښمن زیان احوال راکاوه، پورتني تلفات ،پوځي او مالي زیانونه اشغالګروته واوښتل برید پداسې وخت کې پای ته ورسید چې ټول فدایان شهیدان اوموږته یې له عبرته ډکې خاطرې په میراث کې پرېښودې ! روح دې ښاد او لاره دې یې روښانه وي

# تراویح

## مشروعیت او احکام یې

ابو یاسر

### د تراویحو لغوي او شرعي معناوي

تراویح د ترویحة جمع ده له راحة څخه اخستل شوي. څرنګه چې په دغه مشروع او مسنون عبادة کې د هرو څلورو رکعتونو څخه وروسته د استراحت ناسته کیږي نو ځکه ورته تراویح وویل شوي.

التراويح: لغة جمع ترويحة، وهي من الراحة، وسميت بهذا الاسم لأن المصلين كانوا يستريحون بالجلسة بين كل ترويحتين [ اى بعد كل أربع ركعات]

او د شرعي په اصطلاح کې تراویح دروژي په مبارکه میاشت کې هغه شل رکعته لمانځه ته ویل کیږي چې د ماخوستن له فرضو او سنتو وروسته ادا کیږي. دغه تراویحو ته په حدیثو کې د قیام اللیل نوم هم ورکړل شوی دی.

وشرعا: هي صلاة قيام الليل في رمضان. وهي وإن اختصت بشهر رمضان، فإنها داخلة في عموم قيام الليل، وقد جاءت نصوص تدخلها في عموم قيام الليل، ونصوص أخرى تخصها بقيام رمضان ؛

د تروایحو لمونځ په رمضان المبارک پوري ځانګړی شوی یعني په نورو میاشتو کې نه ادا کیږي ، همدا راز د تراویحو لمونځ په شپه پوري خاص دی دورځي له مخي نه ادا کیږي

### د تراویحو مشروعیت

د تراویحو د مشروعیت په اړه د عائشې رضی الله تعالی څخه روایت دی چې یوه شپه پیغمبر صلی الله علیه وسلم د شپې په یوه برخه کې مسجد ته راووت او په لمانځه ودریده

[خلکو چې پیغمبرصلی الله علیه وسلم په لمانځه ولیدل] نو په هغه پسې له شا په لمانځه ودریدل اوله پیغمبرصلی الله علیه وسلم سره یې په جماعت لمونځ اداکړ، چې سهار شو خلکو نوروته ددغه لمانځه یادونه وکړه، دوهمه ورځ چې پیغمبرصلی الله علیه وسلم په هغه وخت دلمانځه لپاره ووت او په لمانځه یې پیل وکړ نو بیا خلکو له شا ور پسې اقتداوکړه او د پیغمبرصلی الله علیه وسلم سره یې په جماعت دغه لمونځ اداکړ په دغه شپه تروړاندینۍ شپه ډیرخلک راغونډ شوي ؤ، سهارخلکو ددي لمانځه یادونه وکړه نو په دریمه شپه دومره خلک راغونډ شول چې مسجد کې نه ځاییده، په ځلورمه شپه پیغمبرصلی الله علیه وسلم مسجد ته نه ورغلی تردي چې د سهار لمانځه ته ورووت کله چې د سهار لمونځ ادا کړ نو خلکو ته یې مخ راوګرزول او د تشهد د کلماتو وروسته یې وویل: نن شپه مسجد ته ستاسو په راتلو زه خبروم لکن [زه له دي امله نه راغلم او دغه لمونځ مو په جماعت ادانه کړ]ویریدم چې دغه لمونځ په تاسو باندي فرض نشي اوبیا به یې تاسو له اداکولو څخه عاجزه شئ.

خو سره له دي چې پیغمبر ﷺ د تراویحو لمونځ په جماعت باندي له اداکولو څخه له دي امله چې فرض نشي ډډه وکړه ولي بیا به یې هم صحابه وته ددي لمانځه ترغیب ورکاوه. لکه په یوه حدیث شریف کې چې راځي چې پیغمبر ﷺ وفرمایل: څوک چې د تراویحو لمونځ په ایمانداري او اخلاص سره اداکړي نو وړاندیني ګناهونه به یې ټول معاف شي.

نو ټولو صحابه وبه دغه د تراویحو لمونځ ځانته ځانته کاوه یعني په جماعت به یې نه کاوه تردي چې د حضرت عمررضی الله تعالی عنه دخلافت دوره راورسیده ، یوه ورځ حضرت عمررضی الله تعالی عنه له کوره مسجد ته راغی کتل یې چې ځینو صحابه وبه د تراویحو په لمانځه کې په نوروپسې اقتداء کړي وه او ځینو به تنهاځانته د تراویحو لمونځ کول حضرت عمررضی الله تعالی عنه وویل: په خدای جل جلاله قسم زه ګمان کوم چې د اټول صحابه په یوه قاري سره راغونډ شي او یو جماعت اداءشي نو دا به ډیرغوره وي

حضرت امیرالمومنین قصدوکړچې بایدټول په یوه قاري پسې اقتداوکړي نو ابی بن کعب رضی الله تعالی عنه ته یې امروکړچې درمضان المبارک په میاشت کې دنوروصحابه ود تراویحو دلمانځه امامت وکړي بله ورځ چې مسجد ته راغی نو خلک ټول په یوه قاري پسې ولاړو نو حضرت عمررضی الله تعالی عنه ته یې ډیرخوندورکړ اووی ویل دادهمدي عبادت ترټولو ښه نوښت دی.

فعن عروة بن الزبير رحمه الله أن عائشة أم المؤمنين رضي الله عنها أخبرته، أن رسول الله

صلى الله عليه وسلم خرج مرة في جوف الليل فصلى في المسجد فصلى رجال بصلاته، فأصبح الناس يتحدثون بذلک، فاجتمع أكثر منهم، فخرج في الليلة الثانية، فصلى فصلوا بصلاته، وأصبح الناس يتحدثون بذلک، وكثر أهل المسجد في الليلة الثالثة حتى ضاق بهم المسجد، فلما كانت الليلة الرابعة لم يخرج إليهم رسول الله صلى الله عليه وسلم حتى خرج لصلاة الفجر، فلما قضى الصلاة أقبل على الناس بوجهه ثم تشهد وقال:« أما بعد فإنه لم يَخْفَ عليّ شأنكم الليلة، لكني خشيت أن تفرض عليكم، فتعجزوا عنها» فكان رسول الله صلى الله عليه وسلم يرغبهم في قيام رمضان من غير أن يوجبه عليهم ويقول: « من قام رمضان إيماناً واحتساباً، غفر له ماتقدم من ذنبه». وتوفي رسول الله صلى الله عليه وسلم والأمر على هذا

ثم كان الأمر على ذلک في خلافة أبي بكر الصديق، وصدراً من خلافة عمر بن الخطاب رضي الله عنهما. ثم إن عمر رضي الله عنه خرج ليلة من رمضان فطاف في المسجد، وأهل المسجد جماعات ومتفرقون، يصلي الرجل لنفسه، ويصلي الرجل فيصلي بصلاته الرهط، فقال عمر :والله إني لأظن لو جمعنا هؤلاء على قارئ واحد لكان أمثل، ثم عزم على أن يجمعهم على قارئ واحد ،فأمر أبيّ بن كعب رضي الله عنه أن يقوم بهم في رمضان، فخرج والناس يصلون بصلاة قارئهم فأعجبه مارأى وقال: نعمت البدعة هذه. وسيجئ عن الدر المختار ۲\۵۹۸ في المسائل

## دتراويحو لمونځ شل ركعته دي

دخلورومذاهبو او جمهوروعلماوپه نزد تراويح شل ركعته لمونځ دی ،او همدا شل ركعته لمونځ په دي امت کې له هري پيړۍ څخه بلي ته په تواترسره نقل شوی دی ،په دي هکله ډيرحديثونه راغلی دبيلګې په ډول دابن عباس رضی الله تعالی عنه روايت دی چې پيغمبرصلى الله عليه وسلم به دروژي په مبارکه مياشت کې شل رکعته دتراويحو لمونځ کاوه اوبيابه يې دوتر لمونځ کاوه.

وجمهور الأمة على أن عدد ركعاتها عشرون عدا الوتر، وعلى هذا استقر العمل في الحرمين الشريفين ومعظم بلاد الإسلام عن ابن عباس ﷺ ان رسول الله ﷺ كان يصلي في رمضان عشرين ركعة والوتر. اخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه والبغوي في معجمه والطبراني في الكبير والبيهقي في سننه. احسن الفتاوى ۳\۵۳۸ وسيجئ زيادة على هذا في مبحث المسائل

## دتراويحو دلمانځه حكم

دتراویحو لمونځ سنة مؤکده عیني دي په هرنارینه اوښځه باندي [ یعني لکه دماسپیښین دفرضوڅخه وړاندي څلوررکعته سنت لمونځ یاد سهار دلمانځه څخه وړاندي دوه رکعته لمونځ اونور...]له پیغمبرصلی الله علیه وسلم اوټولو اصحابوڅخه ثابت دی ، په یوه حدیث کې پیغمبرصلی الله علیه وسلم وایي : چې بې شکه الله تعالی د رمضان المبارک روژه نیول په تاسو باندي فرض کړي او ما یې تاسو ته د تراویحو دعبادت طریقه معلومه کړي ، یا مسنونه ګرزولي .

ان صلاة التراويح سنة مؤكدة لقول رسول الله صلى الله عليه وسلم: « إن الله فرض عليكم صيام رمضان، وسننت لكم قيامه». وأداؤها جماعة سنة كفاية أيضاً، لما ورد أن رسول الله صلى الله عليه وسلم أمّ المسلمين في أوائل رمضان، وفي العشر الأواخر منه، عدة مرات في الدر المختار وبذيله رد المحتار ۵۹۲\۲ التراويح سنة مؤكدة لمواظبة الخلفاء الراشدين للرجال والنساء اجماعا . لاحظ التفصيل في المسائل

## دتراویحو په لمانځه کې دجماعت حکم

دتراویحو لمونځ په مسجد کې په یو ځای په جماعت سره اداکول سنة مؤکده کفایه دي یعني که یوه ډله خلک یې په جماعت سره اداکړي نودنورو خلګو غاړې خلاصیږي ، البته خو دغه خلګ چې تراویح په جماعت سره نشي اداکولی نوبیا به یې تنها ضرور اداکوي او ایله کوي به یې نه ،

إن عمر رضي الله عنه خرج ليلة من رمضان فطاف في المسجد ، وأهل المسجد جماعات ومتفرقون، يصلي الرجل لنفسه، ويصلي الرجل فيصلي بصلاته الرهط، فقال عمر :والله إني لأظن لو جمعنا هؤلاء على قارئ واحد لكان أمثل، ثم عزم على أن يجمعهم على قارئ واحد ،فأمر أبيّ بن كعب رضي الله عنه أن يقوم بهم في رمضان، فخرج والناس يصلون بصلاة قارئهم فأعجبه ما رأى وقال: نعمت البدعة هذه .وسيجئ عن الدر المختار ۵۹۸\۲ في المسائل

فتوحيد صلاة التروايح بإمام واحد وجماعتها هي من سنن الخليفة الراشد عمر بن الخطاب رضي الله عنه وقد حثنا رسول الله صلى الله عليه وسلم على التمسك بسنة الخلفاء الراشدين والتزامها، فقال :عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين من بعدي، عضوا عليها بالنواجذ ؛وقال صلى الله عليه وسلم:« اقتدوا باللذين من بعدي أبي بكر وعمر». فرضي الله عن أبي بكر وعمر ورضي الله عن سائر صحابة نبينا الكرام .ماخوذ من فتاوى الشيخ ابن عثيمين

# داسلام غزوات اوسرايا

څوارلسمه برخه

ابو ظهير

**دعصمآ يهودۍ وژل:**

دعصمآ په نوم يوه يهودۍ ښځه وه ، هغې به تل درسول الله ﷺ په باره کې له هجوي ډک شعرونه ويل اوهم يې ورته دډول ډول اذيتونو رسولو کوښښ کاو ، خلک يې په اسلام ، اومسلمانانو بد ګومانه کول ، رسول الله ﷺ لا دبدر څخه نه و راستون ،هغې يووار بيا درسول الله ﷺ په اړه څو دهجوي شعرونه وويل ، کله چې هغه شعرونه درسول الله ﷺ يوه صحابي عمير بن عدیؓ واوريدل هغه دزياتي غوسي نه دانذر کېښود که الله پاک رسول الله ﷺ بيرته روغ رمټ راوست زه به خامخا هغه (يهودۍ ښځه ) قتلوم

کله چې رسول الله ﷺ دبدر څخه مديني منوري ته روغ اوکامياب راستون شو ، هغه (عمير)ؓ په شپه کې توره په لاس روان شو او دهغې کورته ورننوت داچې نوموړیؓ نابينا وه عصمآ يې دلاس په ايښودو وموندله چې ترېنه شاوخوا يې اولادونه ويده ول ، اولادونه يې پريښودل او دعصمآ په سينه کې توره په زوره خښه کړه په بل لوري يې ترې وويسته...

ايښی نذر يې پوره کړ ، دسهار دلمانځه وروسته يې رسول الله ﷺ ته واقعه تيره کړه ، بيا يې له رسول الله ﷺ دا وپوښتل چې په دې کار خوبه زه ګنهګار نه يم ؟

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: لايَنتَطِحُ فيها عَنزانِ

په دې اړه دوه ليوان هم خپل سرونه نه جنګوي يعني داداسې کار ندی چې پکې څوک دې اختلاف وکړي ، انسانان

خو در کنار لیوان اووزي هم په اړه ښکر جنګې نه کوي دبرحق پیغمبر په شان کې دسپکاوي مرتکب تن قتلول هیڅکله هم دملامتیا وړعمل ندی ، بلکې دلوی ثواب وړ کاردی ، چې په اړه یې هیڅ نزاع نشي نشته آن چې څاروي هم دا عمل حق بولي .

په "مصنف حماد بن مسلمه" کې راغلي چې دې ښځې به دمیاشتنی ناروغتیا په وینو ککړ کالي راوړل په مسجد کې به یې غورځولا وپه دې به یې رسول الله ﷺ اوصحابه ووته اذیت ورکاو غرض داچې رسول الله ﷺ دعمیر < پـه دې ګـام پورته کولو سره زیات خوشال شو اونورو صحابه ووته یې وفرمایل:

اذا اَحبَبتم ان تنظروا الی رجل نَصَرَ الله ورسوله بالغیب فانظروا الی عُمیر بن عدی که تاسي دداسي تن لیدل غواړئ چې دالله ﷻ اودهغه درسول یې غایبانه مرسته کړې نو عمیربن عدی ته ګورئ!

حضرت عمر رضي الله عنه وویل: هغه نابینا وخوبیا هم په پټه دالله ﷻ داطاعت لپاره روان شو !رسول الله ﷺ وفرمایل :ده ته اعمی (ړوند) مه وایاست دا بینا دی یعنې په ظاهره اګر که نابینا دی خوپه زړه بینا دی له تاریخې پلوه دغه پیښه دروژې پنځې ورځې پاتې وې چې پیښه شوه .

## دقرقرَة الګدر غزوه:

دبدر څخه دستنیدو وروسته دشوال په پیل کې د"سلیم اوغطفان" قبیلو داجتماع خبر رسول الله ﷺ ته راغی ، په دې سره سملاسي رسول الله ﷺ ددوه سوه کسانو سره یوځای ووت کله چې "کدرچینې" ته ورسید ه، هلته ورته معلومه شوه چې داسلام دښمنان له وړاندې څخه خواره شوي دي ، بیا تردرې ورځو پورې هلته نور هم تم شو ، درې ورځې وروسته له جنګ اوقتال کولو پرته مدینې منورې ته ستون شو دځینو روایتونو څخه دا هم معلومیږي چې دهغوئ په تعقیب پسي رسول الله ﷺ دصحابه وو یوه سریه روانه کړه ، هغوئ په غنیمت کې ځان سره پنځه سوه اوښان راوستل ، دشوال په پاتې ورځو اوذی قعد کې رسول الله ﷺ په مدینه منوره کې وو ، اوپه دې موده کې یې دبدربندیانو په سر فدیه واخسته اوهغوئ یې خوشي کړل زرقاني ا ټوک ۲۵۴ مخ(

## دابی عفک یهودي قتلول:

د همدې شوال په میاشت کې رسول الله ﷺ سالم بن عمیر رضي الله عنهما د"ابو عفک یهودي (دقتلولو پسي ولیږه، ابوعفک په دین یهودي و ه اوبوډا وه چې دیوسل شل کلو په عمر وه،هغه به درسول الله ﷺ په هجوه کې شعرونه ویل ، اوخلک یې درسول الله ﷺ دښمنی ته رابلل ، کله چې دهغه دښمني اوشرارت له حده واوښت رسول الله ﷺ وفرمایل: من لی بهذا الخبیث ؟

څوک دی چې هغه ځما لپاره ( یعنې یوائې ځما داحترام اوعزت لپاره )ددغه خبیث چاره وکړي

سالم بن عمير ﵁ وويل: يارسول الله ! ما له وړاندې نذر اېښى دى چې يا به ابوعفک قتلوم او يا به خپله ووژل کېږم!
ددې وروسته سالم روان شو دگرمۍ شپه وه ابوعفک دغفلت په خوب ويده وه سالم بن عمير ﵁ ورته په سينه کې توره دومره په زوره خښه کړه چې دستر گو په رپ کې داجل کومي ته ورغى ، ابوعفک چيغه وکړه ځوچې خلک ورته راټلل ساه يې وتې وه .

## دبني قنيقاع غزوه:

بني قنيقاع د"عبد الله بن سلام ﵁ "ټبراوخيل وه ،چې ډېر زړور اوميړني وو ، رزگري يې شغل اوپېشه وه ، دشوال مياشتي په پنځلسمه نيټه ددوشنبې په ورځ رسول الله ﷺ دهغوئ بازار ته لاړ اوټول يې يوځاته غونډ کړل اوبيا يې ورته وويل: يامَعشر يهود احذروا من الله مثل مانزَل الله بِقريش مِنَ النقمةِ وأسلموا فَانّكم قد عرفتم انى نبىٌ مرسل تجدون ذلک فى كتا بكم وعَهَدَ الله اليكم

اې ديهودو ډلې ! له الله څخه وډار شئ څنگه چې په قريشو باندې په بدر کې عذاب نازل شو هسې نه په تاسې هم نازل شي ، اسلام راوړئ ولې په تحقيق سره تاسي خپله پوهيږئ چې زه دالله رسول يم کوم چې ستاسي په کتابونو کې هم شته او په اړه يې الله ﷻ له تاسي نه وعده هم اخستې هغوئ (يهودو ) ددې په اوريدو سره غوسه شول او په ځواب کې يې وويل:

تاسې هيڅکله مه غره کېږئ چې يوناپوهه اوبې تجربې قوم (قريش) سره په جنگ کې موغلبه ومونده والله ! که چېرې زمونږ سره ستاسى مقابله راغله درته به په ښه تو گه معلومه شي چې مونږ نارينه يو !

په دې سره الله ﷻ داآيت نازل کړ:

قد كان لكم أية فى فئتين التقتا فئةٌ تُقَاتل فى سبيل الله واخرى كافرةٌ يرونهم مثليهم رأى العين والله يؤيدُ بنصره من يشأء انَّ فى ذلک لعبرة لِأُولى لابصار (ال عمران ۱۳ايت(

په تحقيق سره دى تاسې ته لوى عبرت په هغو دوه ډلو کې چې سره مخامخ شولې (په بدر کې دجنگ لپاره ) يوه ډله وه چې جنگ يې کاوه په لاره دالله کې اوبله ډله چې کافره وه ، ليدل دوئ هغوئ لره دوه چنده دهغوئ په ليدلو دستر گو سره او الله مرسته کوي خپله چې هر چا ته يې اراده وکړي ( دنصرت) بيشکه په دې (زيات اوکم ليدلو ) کې خامخا عبرت )پند) دى له پاره دخاوندانو دبصيرت !

کله چې رسول الله ﷺ هجرت وکړ ،په مدينه منوره کې يې دبنى قنيقاع ، بنوقريظه اوبنو نظير دريواړو سره داتعاهد وکړ چې مونږ به نه له تاسې سره جنگ کوو اونه به ستاسې له دښمن سره مرسته کوو ، خوترټولو لومړى بنى قنيقاع داعهد مات کړ اوپه نهايتي زښته يې رسول الله ﷺ ته ځواب ورکړ اوجنگ ته تيار شول داخلک دمديني منوري په اطرافو کې مېشت ول ، رسول الله ﷺ په مدينه منوره کې پخپل ځاى "ابولبابه بن عبد المنذر انصاري "پرېښود اوخپله دبني قنيقاع په لور ووت ، هغوئ

کلاګانوته ننوتل او په ځانو پسي يې دروازې بندې کړلې ، رسول الله ﷺ دشوال د۱۵ مې نيټې څخه ترذی قعد پورې هغوئ کلابند کړل په ۱٦مه ورځ مجبور شول اود کلاګانو څخه راووتل ، رسول الله ﷺ هغوئ ته دمشکونو ترلو حکم کړ ، درئيس المنافقين عبد الله بن سلول په سوال اوزاريو دقتلو لو په ځای ترې مالونه اوتوکي واخستل شول اوجلا وطن کړای شول ،ددې وروسته رسول الله ﷺ مدينې منورې ته ستون شو ،دغنيمت مال څخه پنځمه ځانته واخيسته او پاتې څلور نوري يې په غانيمنو وويشلي ، دبدر وروسته دالومړی غنيمت وچې رسول الله ﷺ پخپل لاس اخيستی عبادة بن صامت رضي الله عنه وايي :دبني قنيقاع سره حليفانه اړيکې وې ،کله چې ما دهغوئ شرارت اوله عهد په شا کيدل وليدل ورسره مې خپل اړيکې وشلول او ترې بيزاري اوتبری مې اعلان کړه:

يارسول الله اتَبرّ اُ الی الله ورسوله واَتولی الله ورسوله والمؤمنين واَبرأ من خلفِ الکفار وولايتهم البدايه والنهايه ۴ټوک ۳مخ (

يارسول الله زه ستا ددښمنانو څخه بيزاري اعلانوم ، دالله اودهغه درسول لورته دروم ، او الله دهغه رسول ،اومؤمنان خپل دوستان اوحليفان ګرځوم اود کافرانو ددوستۍ اورسره دکړي عهد څخه ځان باسم

### ځېړنه :

په اوس وخت کې داحديث دزيات غور وړدی ولې ښکاره شوه چې څنګه دايمان لپاره دالله ،دهغه درسول او مؤمنانو سره محبت ضروري دی ، هم داسي دالله اودهغه درسول ددښمنانو څخه دنفرت ، بيزارۍ او اوبرآت اعلان هم ضروري دی البدايه والنهايه ۴ټوک ۳مخ(

## د: تولی بی تبرا نيست ممکن!

مصداق هم دغه ځای دی ، حضرت مجدد الف ثانی رحمه الله پخپلو مکتوباتو کې دامسئله ښه روښانه کړې چې دايمان لپاره يوائې تصديق کافي ندی ، څو چې دالله جل جلاله ددښمنانو څخه تبری اوبيزاري ونکړای شي ترهغې يوائې تصديق دايمان لپاره بس ندی هم داراز دامام محمد رحمه الله څخه نقل دي چې : "تبری عن الکفر والکفار" دايمان لپاره شرط لازم دی څو چې يوتن دکفر اوکفارو څخه پوره بيزاري اوتبری ونکړي ترهغې دهغه دايمان لپاره يوائې تصديق کفايت نه کوي افغانستان چې اوس مهال دکفارو په لاس پريوتی ، دهېواد يولوی شمېر خلک ددې حکم تروعيد لاندې راځي ولې هغوئ په ښکاره دکفر اوکفارو سره ملګري دي ، دهغوئ دبري لپاره شپه ورځ خدمتونه کوي ، دمسلمانانو په ضد هغوئ ته څار اوجاسوسي کوي يوشمېر دملي اردو په نامه داسلام اومسلمانانو په خلاف اودکفر ددفاع لپاره عملاً جنګيږي ، چې وقعاً ددغو خلکو ايمان دزياتي انديښني وړ دی ضروري ده چې هغوئ بايد پخپل ايمان ونه وړارشي نوربيا

# نظام اسلامی تنها راه‌حل معضلات ملتها

مهاجر

دوران هـای گذشـته خلافـت اسـلامی ، چـون سـتاره ای درخشـان در افـق تـاریخ ملتهـا و دولتهـا می درخشـد . دورانی کـه سرشـار از مودت و دوستی ، الفت و برادری ، امنیـت و آسـایش ، آزادی و حقوق بشـر و حتی حقوق حیوانـات بـود. خلافـت خلفـای راشــدین وخلافـت عمـربن عبـد العزیـز رحمـه اللهـو همچنیـن بعضـی از خلفـای اسـلامی دیگـر ، نمـادی از تبلور عزت و کرامت انسانی بود کـه ازیهـود و نصـاری گرفتـه تـاغلامـان و بردگـان همـه وهمـه دارای حقوق برابـری از لحاظ بشری بودند . خلفای اسلامی خود از حال مردم با گشت زنی در مناطق آنان باخبر می شدند نان بیوه گان و هیزم پیر زنان رابه دوش خـــود حمـــل مینمودنـــد و خلیفـــه خودلبـاس هـای کهنـه وپینـه دارمیپوشـید . امنیت که یکی از موارد مهم زندگی بشر است و دولتها آن را در مراحل اولیه همه برنامه های خود قرار می دهند، آن روز تا جایی پیاده شده بود که خلیفه خود زیر درختی دور از نگهبان می خوابید و هیچ هراسی از دشمنی که بر او حمله کند نداشت و پیر زنی ضعیف از یک منطقه تا منطقه ای دور به تنهایی با کمال امنیت و آسایش سفر می نمود و خبری از دزدان نبود. آری این امنیت حتی به حیوانات درنده نیز سرایت کرده بود که شاید ما آن را افسانه ای بیش تصور نکنیم. اقتصاد که حرف اول را در اداره حکومت ها می زند، آن روز بجایی رسیده بود که زکات دهندگان دنبال فقیری می گشتند تا زکات شان را به او بدهند اما خیلی به مشکل فقیری می یافتند. طلا و جواهرات تا حدی در دست رس مسلمانان قرار گرفته بود که با ابریشم این پارچه گرانبها آب صورت و بینی را پاک می کردند. عدالت که حرف اول را در دولتها می زند آن روز تا جایی در جامعه به اجرا در آمده بود که خلیفه وقت، بخاطر دعوا با یک مرد یهودی به داد گاه کشانده میشد و قاضی نیز طبق دلایل ظاهری آن فرد یهودی، حق را به آن می داد و خلیفه نیز با کمال اطمینان می پذیرفت. عدالت محوری چنان در نظام اسلامی مطرح بود که خلیفه فرزند خود را که

شراب خورده بود در ملای عام حاضر نموده و حکم شرعی را برآن اجرا مینمود.

بله! کجاست امنیت دولتهای امروزی برای ملتهای خود؟

بنابر ظلمی که بر ملتهای خود روا می دارند، گروه های جدایی طلب و ضد نظام های خود می سازند. با فقر و فاقه ای که دست و پای ملتهای خود را بسته اند - در حالیکه جیب های خود شان پر است - امنیت نسبی را نیز از مردم خود گرفته اند تا جاییکه دزدی و راهزنی یکی از موارد عام در هر قریه و شهری گشته است چه برسد در سطح بالاتر آن.

رشوه خواری و عدم اجرای عدالت از موارد آشکاری هست که در نظام های کنونی داد می زند.

ملتها، دنبال امنیت، عدالت، آزادی و اقتصاد خوب اند و از این بابت است که زمانی بدنبال اشتراکیت و شعار بظاهر شیرین کمونیستها می رفتند و گمان شان این بود که عدالت را در آن حاصل خواهند کرد اما با گذری چند از آن و تجربه دولتها، برای شان ثابت شد که با شکست مواجه گشته اند و زمانی به دنبال جمهوریت می رفتند - چنانچه امروزه نیز بعضی ها فریفته ان اند - و گمان شان این بود تا آزادی را در آن حاصل کنند اما دیدند که همه وهمه سرابی بیش نبودند.

آری، غیر از نظام اسلامی دیگر چاره ای برای جهانیان نمانده است و دارد پی می برد که در نظام اسلامی بسیاری از چیزها هستند که با فاصله ای که از دوران درخشان خلافت اسلامی داشته اند از چشم هایشان پوشیده مانده است و از همین است که نظام اقتصادی خود را به طرف بانکداری اسلامی سوق می دهند.

و مسلمانان نیز به این رشد فکری رسیده اند که راه حل تمام معضلات امنیتی، اقتصادی و عدالت محوری را غیر از نظام اسلامی در دیگر جایی نخواهند یافت.

نمونه کوچکی از این ادعارا می توان در دوران نزدیکمان، حکومت ۷ ساله امارت اسلامی با وجود پایان نرسیدن جنگهای طرف شمال و مشغول بودن حکومت مرکزی با اداره جنگی داخلی و با وجود تحریم های بیرونی و با وجود نداشتن ارتش و سلاح های نظامی و با وجود نداشتن بسیاری از پرسنل های کاری و غیره ، توانستند با صداقت در چار چوب پیاده کردن نظام اسلامی - که داشت آهسته آهسته به رشد ظاهری و معنوی خود می رسید- نمونه ای از امنیت، آسایش و عدالت را در افغانستان که جزء جهان سومش می شماریدند ، پیاده کنند، و بسیاری از دولتمردان همسایه بصورت آشکارا و بعضی ها غیر علنی انگشت تعجب به دهانگذاشته و نمونه امنیت آوردن شان سرزد زبانها گشت.

آری جهان باید دوباره بر گردد به اصلی که روزی آن را تجربه کرد ومدینه فاضله ای که در عمل آن را با

چشمان خود دید؛ آن مدینهفاضله ای که جهان امروزی در بدست آوردن آن چه نقشه هایی که نمی کشد اما چیزی حاصل شان نمی شود جز اینکه نقشه های دیگری بریزند.

بله، جهان اسلام میفهمد که باید بر گردد به همان اجرای نظام اسلامی ولی متجاهلان و معاندان مگر میگذارند؟!!! زیرا با آمدن چنین نظامی، بازار شان را در کساد کامل می بینند ولذا نمی خواهند تا جهانیان باری دیگر از نزدیک نظام اسلامی را لمس کنند و افکار شان دیگر خریداری نداشته باشد.

آنها با مرتب کردن داستانهای خیالی زنده اند و به این طریق ثروت ملتها را به بهانه هایی بالا می کشند و یک روپیه افغانی به آنها داده ودر عوض، صد افغانی دیگر را برای خود ذخیره میکنند.

استثمار گران و خون آشامان ملتها نمی خواهند تا نمومنه نظام اسلامی در جهان پیاده شود زیرا می ترسند تا الگویی برای دیگر ملتها گردند و به همین سبب است تا در کشوری اعلام نظام اسلامی می شود فورا با دست ودندان حمله می کنند و پیروان و رهروان این خواسته را در لیست های سیاه ساختگی خود قرار می دهند که نمونه بارز آن امارت اسلامی افغانستان بود و نمونه های دیگری نیز هست مانند مسلمانان صومالیا که با یورش نیروهای فرانسوی و غیره مواجه شدند و مسلمانان عراق، و همکنون نیز مسلمانان مبارز سوریه را که خواهان برپایی نظام اسلامی هستند در لیست سیاه خود قرار داده اند.

اما گروه های تا دندان مسلحی را که هزارها بی گناه را در سوریه کشته اند و می کشند چون بر خلاف منافع خود نمی بینند لذا با نشان دادن چراغ های سبز خود، راه را برای رشد آنها باز می کنند.

این است عدالت نظام های پوچ غربی و این است اساس نظام های اروپایی.

و در حقیقت تنها این نظام اسلامی است که توانایی قیادت کل ملتها را داشته وعدالت ،امنیت، اقتصاد سالم و دایم و رشد معنوی ملتها را در اساس برنامه های خود دارد.

به امیدی که همه ملتها و بخصوص بهار عربی رخش را به سوی بهار نظام اسلامی عوض کند و باری دیگر مدینه فاضله را با اجرای نظام اسلامی به جهانیان نشان دهد به امید احیای خلافت اسلامی در جهان وما ذالک علی الله بعزیز.

د"CIA" يو
پخوانی مسؤول

# موږ له هر هغه شي څخه ويره احساسوو چې د اسلام کلمه پکې وي

احمد الله

د امريکا د مرکزي استخباراتو سي آي اې يو پخواني مسؤول د مصر په ولسمشر محمد مرسي باندې کودتا کې د امريکا رول ته اشاره کړې. مايکل شيور ((چې پخوا يې د "CIA" دهغه کنډک مشر وو چې د القاعدې د تنظيم د مشر اسامه ابن لادن رحمه الله دلټون دنده يې په غاړه درلوده)) ويلي: هغه پوښتنه چې ډيره مطرح کيږي دا ده چې آيا په اسلامي نړۍ کې به داسې يو اسلامي نظام وده وکړي چې د ډيويډ کاميرون، باراک اوباما او د ديموکرات ګوند نورو مشرانو ته د منلو وړ وي؟ نوموړي ددې پوښتنې په ځواب کې وويل: موږ له هر هغه شي څخه ويره احساسوو چې د اسلام کلمه پکې وي، خو سره لدې هم دا به ډيره بې عقلي وي چې موږ په مصر کې د يوه داسې نظام د قائميدو هيله ولرو چې اسلامپال دې پکې واک ونلري.

شيور دا څرګندونې د خپلو هغو خبرو په ترځ کې وکړې چې په اسلامي نړۍ په ځانګړې توګه په افغانستان کې يې د ديموکراسۍ د قيام لپاره د متحده ايالاتو دهلو ځلو په اړه کولې، خو د نوموړي په وينا عربي او اسلامي وولسونه د امريکا هڅو ته خنډونه ايجادوي او د اسلامي حکومتونو د قيام لپاره هلې ځلې کوي.

نوموړي دا هم جوته کړه چې له څلويښتو کالو راهيسې د امريکا خارجي سياست په استبداد ولاړ سياست دی، د نوموړي په باور دا سياست له پيل څخه ناوړه سياست دی، خو په هر حال دا زمونږ استراتيژي وه چې اوس له ماتې سره په مخامخ کيدو ده.

شيور دا هم وپوښتل: چې کله موږ ته دا جوته شي چې د مثال په توګه د مصر دا حکومت د فلوريډا حکومت ته ورته ندی نو آيا موږ به يې منو او که د له منځه وړلو لپاره به پکې مداخله کوو ترڅو داسې حکومت راولو چې زموږ له خوښې سره سم وي؟

هغه څرګنده کړه چې په راتلونکي کې به په ليبيا، تونس او مصر کې د امريکا داوسنۍ ادارې په خوښه حکومتونه قائم نشي، ځکه اوسنۍ ادارې ته هغه حکومت د منلو وړ ندی چې اسلامپال پکې وجود ولري. د يادولو وړ ده چې د اخوان المسلمين د ډلې ډيری مشرانو د خپلو لاريونونو پر مهال په مصر کې د متحده ايالاتو سفيره ګرمه وګڼله چې د مصر په وروستيو پيښو کې پوره لاس لري، چې په ترځ کې يې په محمد مرسي باندې کودتا وشوه او له واکه ليرې کړل شو.

# دامام ابو حازم یوه

سیال: ـــــــــ

# په زړه پوري واقعه

که اسلامي تاریخ مطالعه کړو نو زموږ اسلافو صحابه کرامو تابعینو ، امامانو ، مجتهدینو او متدینو علماء کرامو ددین په لاره کې داسې ثبات او استقامت درلود چې هیڅ کله هم ددنیا خوندونو او دیوه مستبد ځواک استبداد ته داسلام له لارې نه دي ورکاږه شوي.

هغوئ داسې صبر او ثبات درلود ، چې ورته دډیر پیاوړي عقل او غټ زړه خاوندان هم له حیرت څخه ګوته په غاښ دریږي اودلوی علم خاوندان هم داپوښتنه کوي چې هغه کوم اسباب وو چې ددوئ ددومره عظیم صبر او ثبات لامل جوړیدل.

هو کي ! هغوئ په واحد الله ج باندې دټینګ ایمان درلودلو دهغه دحقیقي پیژندلو اودرست معرفت له وجهي ددنیا هر څه ته شاکړې وه ، ځکه یو ځل چې زړه دایمان په نور منور شي او دایمان ځلیدونکي ستوري دزړه په افق راڅرګند شي او داعتقاد شمع په زړه کې بله شي ،نوبیا هغه له غرونو څخه هم ټینګ وي او هم درونډ ، ټول مشکلات او کړاوو نه که هر څومره ډیر هم وي ،دنشت برابروي او هغه ټول دخپل ایمان په مقابل کې لکه داوبو ځګ اویا لکه دیوه طوفاني سیلاب په مخ کې دشګوبند شمیري.

دخپل ایماني لذت او اعتقادي راحت او طراوت په وړاندې هر قسم لذتونه چې له دنیا سره تړاؤ لري ورته لذت نه وایي.

غوره به وي چې دهمدې مقصد داثبات لپاره دحضرت ابو حازم تابعي رحمه الله او خلیفه سلیمان بن عبدالملک قصه واورو !

چې په مسند دارمي کې په سند سره ذکر شوې ده :وایي چې یو وار سلیمان بن عبدالملک مدینې منورې ته ورسید ، دڅوورځو له تیریدلو څخه وروسته یې له خلکو څخه پوښتنه وکړه،

چې په مدينه کې اوس يو داسي څوک شته چې ملاقات يې له يوه صحابي سره شوی وي [ يعني په اصطلاح تابعي وي ] ؟

خلکو ورته وويل: هو ! يو سړی دابو حازم په نامه موجود دی.

سليمان سمد ستي خپل قاصد پسي وليږه ، ترڅو ابو حازم ورته راحاضرکړي ،کله چې ابو حازم راغی له دوديزو مناسباتو وروسته ورته سليمان وويل: آيا دا نه سړيتوب اوبې وفايي نه ده چې دمديني ټول مشهورخلک زما په راتلو خوشحال او ملاقات ته راغلل ، او ته رانغلې ؟

ابو حازم جواب ورکړچې ای اميرالمؤمنينه !زه تا دخدای ج په امان او پناه کې ورکوم ،چې داسي خبره ونه کړې ،چې هغه له واقعي څخه خلاف وي ، له نن څخه مخکي نه ته له ما څخه خبروې اونه ته ماليدلی وې ،نو په داسي حال کې په خپله دملاقات کولو سوال هم نه پاتي کيږي.

سليمان يې ځواب واريد ، نو ابن شهاب الزهري اونورو حاضرينو ته يې وکتل ، امام زهري ورته وويل چې ابو حازم صحيح وايي: تاسو غلط ياست ، تردې وروسته سليمان دخبرو مخ بدل کړ،څه پوښتني يې شروع کړي اوويې ويل ای ابو حازمه !دا څه خبره ده !چې مونږ له مرګ څخه ويريږو ؟ابو حازم ورته وويل وجه يې داده، چې تاسو خپل آخرت وران کړی اودنيا دي اباده کړې ،نو په دې وجه له ابادۍ څخه ورانۍ ته تلل نه خوښوي ،

سليمان ومنله اوبله پوښتنه يې وکړه:چې سبا به دالله تعالی په مخ کې حاضري څنګه وي ؟

ابو حازم ځواب ورکړ:چې دښو اخلاقو خاوندان به دالله تعالی حضورته داسي ځي لکه يو مسافرله سفرڅخه راستون اوبيادخپل کورله غړو سره ملاقي کيږي ، اوبد عمل کونکي به داسي راوړاندې کيږي لکه تښتيدلی غلام [مريی ]چې ونيول شي اوبيا دخپل مالک مخ ته راوستل کيږي ،

سليمان چې دا واوريدل نو په ژړا شو اوويې ويل: افسوس چې موږته معلوم وای چې الله تعالی زموږلپاره کوم صورت مقررکړی ؟ابو حازم ورته وويل:خپل اعمال په قرآن وړاندې کړه ،نو درک به درته ولګيږي ،

سليمان پوښتنه وکړه چې د قرآن دکوم آيت څخه به دا معلومه شي ؟

ابو حازم ورته وويل: ان الابرارلفي نعيم وان الفجارلفي جحيم ، يعني بيشکه نيکان به په

نعمتونو کې وي اونافرمان گنهگاران به په دوزخ کې وي ،

سلیمان وویل: چې دالله رحمت خولوی دی، حتی چې بدکاروته هم دخدای جل جلاله رحمت رسیږي ،

ابوحازم وویل: ان رحمة الله قریب من المحسنین ، بیشکه چې دالله رحمت نیکانو ته نږدې دی

سلیمان پوښتنه وکړه ،ای ابوحازمه !دالله تعالی په بندگانو کې ترټولو لوی عزت والاڅوک دی ؟

ابوحازم ورته وویل: هغه خلک دي چې عقل سلیم اومروت ولري ،

بیایې داپوښتنه ترینه وکړه چې کوم عمل ډیرغوره دی ؟

ابوحازم ورته وویل: دفرائضو اوواجباتو اداء کول اوله حرامو څخه ځان ژغورل.

بیایې پوښتنه وکړه چې کومه دعا زیاته قبلیدونکې ده؟

ابوحازم وفرمایل: په کوم سړي چې احسان شوی وي دهغه دعاد احسان کوونکي لپاره قبلیدوته زیاته نږدې ده.

بیایې پوښتنه وکړه چې کومه صدقه ډیره غوره ده ؟

ابوحازم وویل: چې له خپل افلاس اوخوارۍ سره سره یوداسې سائل ته ورکول چې پرهغه مصیبت راغلی وي اوداسې خرڅ کول چې په هغه سره نه مخکنی احسان ثابتول مطلب وي اونه ورباندې صدقه ورکړل شوي ،تکلیف ورکړل شي

سلیمان: کوم کلام ډیرښه دی؟

ابوحازم: له کوم چاڅخه چې ستاویره وي ،یاهغه ته ستاڅه حاجت اوستاامیدله هغه سره تړلی وي ، دداسې سړي په وړاندې پرته له کوم رعایت نه دحق خبره کول بهترین کلام دی.

سلیمان : کوم مسلمان ترټولوزیات هوښیاردی ؟

ابوحازم: هغه څوک چې دالله تعالی دفرمانبردارۍ لپاره کاروکړي اونوروته دداسې کولو دعوت ورکړي !

سلیمان: په مسلمانانوکې کوم سړی ډیربې عقل دی ؟

ابوحازم : هغه څوک چې دخپل وروردظلم مددګاروي ، مطلب داچې هغه دنورو خلکو ددنیادسمولو لپاره خپل دین بربادکړي.

سلیمان : صحیح دي وویل.

سلیمان : په نورو واضحو الفاظووویل چې زموږ په باب دې څه رایه ده ؟

ابوحازم: که مې نورمعاف کړي مهرباني به مووي ،

سلیمان: نه تاسو ضرورڅه دنصیحت کلمات راته ونښایاست !

ابوحازم : ای امیرالمؤمنینه ! ستاپلرونو اونیکونودتوري په زور په خلکوتسلط حاصل کړی و ،اوډیرخلک یې وژلي اوله دي ټولو کړنو وروسته له دنیاڅخه ولاړل ، کاشکي تاسوته پته وای چې له مرګ وروسته به هغوی څه وایي ؟ دوئ ته به څه وویل شي ،

په نوکرانوکې یونوکرچې دبادشاه دمزاج خلاف دابوحازم داپه ډاګه وینا واوریده ویې ویل: ای ابوحازمه تاسو داډیره بده خبره وکړه !

ابوحازم ورته وویل: چې ته غلط وایې بده خبره نه ده، بلکې داهغه خبره ده چې دکولو لپاره یې موږته الله تعالی حکم کړی ، ځکه چې الله تعالی له علماوو څخه عهداوپیمان اخستی ،چې حق خبره به نه پټوي ، بلکې ترخلکوپوري به یې رسوي ، لتبیننه للناس ولاتکتمونه ،یعني خامخابه تاسو حق خبرترخلکوپوري رسوئ اوپټوئ به یې نه ،

سلیمان بیاپوښتنه وکړه اوویې ویل: زموږ دصحیح کیدلو طریقه څه ده ؟

ابوحازم : تکبرپریږده ، مروت اومیړانه په ځان کې پیداکړه اوحقدارو ته دهغوئ حقونه په انصاف ورکړه !

سلیمان : ابوحازمه ! کیدای شي چې له موږ سره پاتي شئ؟

ابوحازم : په خدای سره پناه غواړم

سلیمان : ولي ؟

ابوحازم : ځکه چې زه ستاسو دمال دولت اوعزت طرف ته مایل نه شم ، چې بیادهغه په نتیجه کې ماته عذاب راکړل شي.

سلیمان : که ستاسو کوم ضرورت وي نو ویې ښایاست چې مونږیې پوره کړو ؟

ابوحازم : یو حاجت شته هغه دا چې له جهنم څخه خلاصون راکړه او جنت ته مي داخل کړه !

سلیمان : داخوزما په اختیارکې نه دي ؟

ابوحازم : نوبیازه ستاڅخه دبل حاجت پوره کول نه غواړم !

په اخیرکې سلیمان وویل : ښه نوزمالپاره دعاء وکړه ، نوابوحازم داسي دعاوکړه ، ای الله جل جلاله که سلیمان تاته خوښ وي ،نودهغه لپاره ددنیا اوآخرت دواړوبهترکولو لپاره عملونه اسان کړه اوکه چیري دی ستادښمن وي ،نویې تروېښتانو ونیسه اودخپلي رضا دکارونولپاره یې راوګرځوه

سلیمان: ماته څه وصیت وکړه ؟

ابوحازم : دخپل پرودګارعظمت اوجلال په هغه درجه کې ساته چې الله تعالی دې په هغه مقام کې ونه ویني له کوم څخه چې یې منع کړی یې ، اوله هغه مکان څخه غیرحاضرنه شي کوم ته چې په هغه ستادورتلو حکم کړی دی ،

سلیمان ددې مجلس له ختمیدو وروسته سل [۱۰۰] اشرفۍ دډالۍ په توګه ابوحازم ته ولیږلي ، ابوحازم له یو خط سره بیرته ورولیږلي، چې په هغه کې یې داسي لیکلي و : که چیري داسل اشرفۍ زمادخبروبدله وي ،نو دازما په نزدتروینو اوخنزیرزیات بیکاره شئ دی ، اوکه چیري دا په دې وجه رالیږل شوي وي، چې په بیت المال کې زماحق شته ،نو زما په شان زرګونه عالمان اوددین خدمتګاران شته ،که چیرې دې ټولوته همدومره ورکړي وي، نویې زه هم اخستلی شم اوکه داسي هم نه وي نوبیاماته ددې ضرورت نشته !

دیادوني ده چې ابوحازم چې دخپل نصحیت عوض اواجرت اخیستل ته دوینو اوخنزیرحکم ورکوي دابښیي چې دده په آنداوهغه عصرکې دطاعت یاعبادت عوض اخستل جائزنه و.

درنو لوستونکو ! همدا واقعه په څرګندوټکوکې راته ښیي چې زمونږ اسلافو هیڅ کله هم دمادیاتو ، مالونو ، دنیاوي ښکلاګانو اودکوم زورورپه وړاندي له حق ویلو څخه خپل ځانونه نه دي تیریکړي اوټینګ عزم ، ثبات او استقامت یې ددین په لاره کې درلود

# ذبیح الله مجاهد

# ځوشیبې له خپل ولس سره

**السلام علیکم ! زما پوښتنه داده چې دقطر دفتر دپرانستو سره به داسلامي امارت اړیکې نورو هیوادوته هم غزېږي او که نه ؟ رحمتي**

ځواب: وعلیکم السلام ! روښانه ده چې اسلامي امارت غواړي چې دنړۍ له ټولو هیوادونو سره ښې اړیکې تأمین کړي ، ددې هدف لپاره دنورو هیوادو خصوصا اسلامی نړۍ سره ټینګې اړیکې جوړول ، هم زموږ په ګټه ده او هم دنورو هیوادونو ، اسلامي امارت دنړۍ له ولسونو سره دښو اړیکو دلرلو لپاره هره ممکنه لاره کاروي ، او دخپلو اړیکو ، دفترونو او استازو په وسیله به وشی کولای چې نړیوال داسلامي امارت په هدف ، هیلو او آرزوګانو آګاه کړي. مننه

**اول مې سلامونه ومنئ ، سوال دادی چې دفتر خو پرانستل شو ، د جهاد په میدان کې خوبه کومه وقفه یا اوربند له دښمن سره نه کیږي ، ځکه امکان لري امریکایان یې غوښتنه وکړي ؟ محمدیوسف**

ځواب: وعلیکم السلام ! په قطرهیواد کې داسلامي امارت دفتر له ټولو نړیوالو سره داړیکو لپاره خلاص شوی ، خو که امریکایان دافغانستان اشغال ته دپای ټکی کیږدي او خپل یرغلګر ځواکونه له افغانستانه وباسي پخپله جګړه کمیږي او حتی دریږی ، ځکه کله چې امریکایان له افغانستانه لاړشي دلته شته اجیران او غلامان یې یتیمان کیږی او پخپله به دځان لپاره یوه داسې تګ لاره غوره کوي چې نور داسلامی حاکمیت سره مخالفت ونشي ، زموږ په

هیواد کې د نویو جګړو لپاره لاره هواره نشي او نور د افغانستان د دوو لویو جهادونو د شهیدانو آرمانونه پوره او په هیواد کې د اسلام تر بیرغ لاندې آرام ، سوکاله او آزاد ژوند ته زمینه برابره شي.

**وعظ او تبلیغ**

**زموږ ګران مجاهده وروره السلام علیکم---- څنګه چې ټولو ته معلومه ده دهیواد تر ۸۰ سلنه کلي او ولسوالۍ ګانې دمجاهدینو تر واک لاندې دي چې دمجاهیدینو هر شرعي امر په کې اجرا کیدای شي، اما دا پوښتنه ده چې ولې مجاهدین په خپلو ساحو کې د خلکو دیني زده کړو ته توجه نه کوي ؟ په کلي کې جومات شته ، امام شته امام معاش اخلی ،مګر په سلو کې  که په یوه جومات کې دیني درس او دیني وعظ وي، په نورو کې نشه همدا علت دی چې زموږ کوچنیان بې تعلیمه پاتې کیږي او په دیني مسائلو نه پوهیږی . تمیم مجاهد**

ځواب ـ وعلیکم السلام ! تمیم وروره ستاسو غوښتنه خورا پرځای او له احساس ډکه ده ، واقعا چې زموږ مساجد او هلته میشت ملا امامان خورا لوی مسئولیت لری او ددین په برخه کې ډیر څه کولای هم شي ، خو ستاسو له غوښتنې سره سم د اسلامی امارت د تعلیم او تربیې څانګې همدا کار پیل کړی او له ډیرې مودې راهیسې په هغه ځایونو کې چې د اسلامی امارت د مجاهدینو واک ټینګ ده او موانع نشته عملا همداسې پروګرامونه تر لاس لاندې دي  او د پیاوړتیا لپاره یې هم لازیات کارونه روان دي ، په دې اړه د تعلیم او تربیې د پروګرامونو یوه کوچنۍ برخه لاندی تاسو ته نقل کوم چې د تعلیم او تربیې د مسئولینو لخوا ستاسو د پوښتنې په رابطه وضاحت راغلی :

د کلیوالي مدرسو په برخه کې

څرنګه چې زموږ اکثریت ملت په اطرافو او کلیوالي سیمو کې ژوند کوي او د ډیرو تعلیمي اسانتیاوو څخه بې برخې دی نو د هغوی د کوچنیانو لپاره په خپلو کلیو کې د ابتدائي ، ضروري دیني تعلیماتو لپاره د کلیوالي مدرسو جوړول د کمیسیون له اهدافو څخه یو مهم هدف دی چې په لاندې ځانګړتیاوو سره په دې برخه کې قدم اخیستل شوی دی !

الف : د دوی د تعلیم لپاره د کلیو امامان مؤظف شوې دي ترڅو په ورځ کې اقلاً له (۲ ) څخه تر (دوه نیم ) ساعته پورې د خپل کلي کوچنیانو ته په مسجد یا یو کور کې درس ووایي.

ب : ترڅو چې د دوی لپاره یو ټاکلی نصاب جوړیږي مروّج دیني مضامین لکه

قاعده ، قرآنکریم ، شروط الصلاة ، قدوري ، پنج ګنج او د مجاهدینو دوخت د مکاتبو د

لمړنیو دریو صنفونو کتابونه ورته ویل کېږي.

ج: پورتني کتابونه او ورسره نورتعلیمي مواد لکه قلم، کتابچه وغیره دکمیسیون لخوا ورته برابرېږي.

د: دهجرت په دیارکې هم کوشش روان دی ترڅو په کمپونو کې هم زموږ دمهاجرو کوچنیانو لپاره دتعلیم زمینه برابره کړو.

هـ: ددغو کلیوالي مدارسو لپاره دوخت اوشرائطو سره سم ددریو کلونو یو نصاب جوړ شوی او چاپ ته آماده دی.

خو داچې تراوسه څه شوي دي هغه کفایت نه کوي او لا باید دا دایره پراخه او لاهم عملي شي، زه ستاسو پوښتې د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې داړوندې موضوع له مسئولینو سره شریکوم او هیله من یم چې لا ګړندي ګامونه پورته کړل شي او یو بل زیری هم درکوم چې په نژدې را تلونکې کې به دتعلیم او تربیې دکمیسیون دعمومي مسؤل سره زموږ دهمکارانو هر اړخیزه مرکه هم پرلیکه شي چې تاسو او نور هیواد وال به د اسلامي امارت دتعلیمي پرګرامونو څخه په بشپړ ډول معلومات ترلاسه کړئ.

**السلام علیکم!**

**که چیرې طالبان په دې وتوانیږي چې افغانستان کې واک ته ورسیږي اویاهم په یوه نوعه ورګډ شي نو دامارت دریځ د افغانستان د مسلحو ځواکونو او نورو لس کلنو لاس ته راوړنو په اړه څه ده، آیا اردو به رنګوي او یا به یې ساتي؟ اوسنی اردو که هرڅا جوړه کړې خو بیاهم لښکر یې افغاني دی. مننه دلاور**

ځواب ـ کله چې هیواد آزاد شي او یو واقعا سوچه اسلامي حاکمیت مینځته راځي نو خامخا باید په هیواد کې ټول هغه مجاز پرمختګونه چې زموږ ددین او دهیواد ملي ګټې یې ایجابوي دهغو ساتل او لا تقویه کول زموږ دنده ده، هر افغان هیله لري چې هیواد یې آباد او سوکاله وي، هر افغان هیله لري چې دهیوادوالو ژوند یې مرفه او له آسانتیاوو ډک وي او په دې کې شک نشته چې موږ له بل هر افغان څخه زیات دخپل هیواد او خلکو دپرمختګ لپاره ژمن یو، په هیواد کې چې داقتصاد په برخه کې کوم پرمختګ شوي نه تنها هغه به ساتل کیږي بلکې دپیاوړتیا لپاره یې سعې کیږي، خو یو اصل مهم ده چې که په اقتصادي برخه کې موږ شرعي موانع ولرو، لکه دسود معامله، دغیرمجاز تجارتونو مسئله، دهیواد دکانونو په برخه کې سهل آنګاري او یا داسې اقتصادي تړونونه چې زموږ ملی سرمایې ته زیان اړوي

دهغو ټولو لپاره به لازم مکانیزم او داسي شرائط برابرېږي چي نه په هیواد کې پانګه اچونکي کسان زیان وويني او نه زموږ ديني اصول او هيوادني ملي ګټې له نظره وغورځول شي ، په یادو برخو کې به لازم اصلاحات راوستل کيږي.

پاته شوه د اردو او د هیواد امنيتي ځواک مسئله: دابايد تاسو ومنئ چي دکابل رژيم اوسنی امنيتي ځواک په ډيره بيړه ، په غير معياري شکل او ديوخاص هدف لپاره جوړ شوي چي هغه په هيواد کې ديرغلګرو سره همکاري او مرسته ده ، نو طبعا به دغه امنيتي ځواک ژور ې اصلاح ته ضرورت لري ، اوسني اردو ټوله په انفعالي شکل جوړه شوي او پکې ګمارل شوي کسان اکثره هغه ځوانان دي چې يا په نشه يې توکو روږد دي او يا په کليو او کورونو کې دټولنې هغه بدخلک کي استخدام شوي چي هيله او آرزوي يې دځو روپو پيدا کول دی او بس ، نه کومه مشروع انګيزه لري ، نه دهيواد او اسلام په وړاندې له کوم تعهد نه خبردي او نه هم زړور تيا او غرور لري چې داټولې تشي ديوې اردو او امنيتي ځواک لپاره غټ عيب بلل کيږي ، ددغو مشکلاتو په وجه به اسلامی امارت دحاکميت په صورت کې چې حالات دنورمال کيدو په طرف درومي موږ به يوداسي امنيتي ځواک جوړوو چې هغه دافغانانو په لاس دافغانستان اودلته داسلامی ارزښتونو دتحفظ لپاره جوړ شوي ځواک وي ، دهغو روحيه عالي وي ، دهغو تعليم او تربيه په خورا آزاده او سرلوړې فضاکې شوي وي ، دهغو تعهد او ژمنه دخپل دين او هيواد سره دومره قوي وی چې بل هيڅ شی يې هم په وړاندې ورته ارزښت ونلري ، لکه الحمدلله نن زموږ مجاهدين او په خاص ډول فدايان چې دخپل دين دساتلو او دخپلو سرحداتو او آزادی لپاره هر ساعت سرښندنې ته تيار دي ، نو موږ غواړو چې په راتلونکي امنيتي جوړښت کې ښه بدلونونه راولو او کوم شيان چې بيا مثبت موږ ته پاتې کيږي هغه به هم وخت ته په کتو په خپل حال پاتې وی او د اصلاح او لا قوي کيدو هلې ځلې به يې کيږي.

**سلام مجاهده وروه امید چې صحتمنده وسئ**

**زه غواړم دادرته ووايم چې کاشکې تاسو په پنجشير کښې دولايت دمقام پرځای د مسعود په قبر باندې حمله کړې وای او هغه مو له مينځه ځخه وړی وای . په درناوي تورعقاب دکابل ځخه**

ځواب ـ وعليکم السلام ! ورورە دپنجشير په ولايت باندی بريد خو په دښمن بريد وو او دښمن ته يي درنه مرګ ژوبله واړوله ، ولی په قبرونو باندی بريد او دقبرونو له منځه وړل دا سم کار نه ده ، په قبرونو کې خومړی اوسيږي او زموږ دښمن چې مړ شي بيا يي موږ څه کوو ، نوره

معامله يي الله تعالی ته سپارو ، الله تعالي دي خپل حساب ورسره وکړي ، بل که مطلب مو داوي چې دهغو له قبرونو نه غیر مجاز او غیر شرعی استفاده کیږي، ددې کار دمخ نیوې لپاره نورې سهل او نرمې لارې هم شته چې زه فکر نه کوم چې باید دومره جدی وګڼل شي چې څوکسان دې ځانونه پرې قرباني کړي ، نه بلکې د وعظ او نصحت دلارې او په لازم وخت کې دحاکمیت د لارې نه موږ توانیږو چې دخرافاتو مخه ونیسو او دغیر شرعي کارونونه خلک منع کړو.

**مجاهد ورور سلامونه او نیکی هیلې !**

**زما سوال له تاسو نه دادی چې د اسلام یا د قران عظیم الشان په کومه پاڼه کې د مسلمانانو وژنه جایز ګڼل شوې؟ ستاسو په هر انتحاري برید کې بې ګناه غریب مسکیین خلک له منځه ځي، ټول دسره بې ګناه خلک ، د داسې بریدونو نه څه جوړیږي، د خدای لپاره لږ دې مظلومو خلکو باندی ورحمیږئ. ارزو ، واڼه**

ځواب ـ وعلیکم السلام ! اګرکه ما په دې سلسله کې داسې پوښتنو ته په کراتو ځواب ویلی ، خو یوځل بیا هم لازمه بولم چې تاسوته دومره ولیکم چې دبې ګناه مسلمان وژنه په هیڅ ځای کې هم نشته چې جایز شي ، او زموږ دبریدونو هدف کله هم هغه مسلمان نه وي چې هغه دیرغلګرو په پلوي نه وي ولاړ ، تاسوته به دکابل دغه وروستې بریدونه معلوم شوی وي چې هیڅ ملکی مرګ ژوبله یي نه لرله صرف دښمن په نښه شوي وو او له منځه ولاړ ، خو یو هغه کسان وژل دی چې دیرغلګرو سره همکاري لري دهغو په وژنه کې هیڅ کوم شرعي ستونزه نشته مسلمان خو دي ولې حمایت له کفارونه کوی ، دخپل هیواد داشغال دتداوم سبب دي او له اشغالګرونه مخ کې دوی دمجاهدینو په ضد اجرات کوي ، ددغو خلکو وژل شرعا واجب دي ترڅو مسلمانه ټولنه دد غسې اشخاصو له شره محفوظه کړل شي ، دغو کسانو ته شرعا ساعي بالفساد ویل کیږي چې فقهایي په اړه لیکي ( ویجوز قتلهم ویثاب قاتلهم ) ددوي قتل جایز ده او قاتل ته به یي الله تعالی اجر ورکوی.

یو هغه خلک وژل دي چې هغه ماشومان دي ،بې طرفه ښځې دي یا سپین ږیرې دی چې چیرت په کوم برید کې شهیدانیږي نو زه په یقین سره ویلای شم چې دهغو خلکو شهادت دهیڅ مجاهد قصدي عمل نه ده ، تاسو پوهیږي. چې دیو بې ګناه سړی وژنه لوی جرم ده او هیڅ مجاهد هم چې دالله ددین کلک پیرو ده ، دې ته نه آماده کیږي چې بې ګناه خلک قصدا ووژني ، البته د څه تخنیکي ستونزو له امله ، یا د انفجار دلوی والی له امله ، یا دبرید په لاره کې دخنډونو دایجاد له امله که چیرې انفجار بې ځایه مینځته راشي اوعام خلک شهیدان کړی دا

کاملا د تأسف ځای ده او باید ځان هم ترې وساتل شي خودداسې پیښو رامنځته کیدل ممکن دي او په ټولیزه توګه ځان نشي ورنه ساتل کیدای ، حتي په داسې پیښو کې پخپله مجاهدین هم دخپل ماین یا خپلي وسلې په وجه شهیدانیږی چې کاملا غیر اختیاری پیښه وي ، هرمجاهد ته عالیقدر امیرالمؤمنین او داسلامي امارت نورو محترمو مشرانوامر کړی چې باید خپل برید داسي تنظیم کړي چې ملکي خلکوته زیان ونه رسیږي ،تاسي مطمئن اوسئ چې موږ دې کار ته ډیر متوجه یو داسلامي امارت په چوکاټ کي دملکي تلفاتو دمخنوي دپاره باصلاحیته اداره جوړه ده که کله داسي پیښه رامینځته کیږي دوی یې هر اړخیزه څیړنه کوي او بیا لازم اجرا آت کوي .

خو تاسو هم باید دملکی تلفاتو موضوع له بې پرې پلوه ارزیابي کړي ، صرف در ادیوګانو او ددښمن په ادعاوو مه خطاوځي ، دسوء تبلیغاتو تر تأثیر لاندې مه راځئ ، دملکي تلفاتو په اصلي تعریف ، معنی او مصداق ځان پوه کړی بیا قضاوت وکړئ ، دملکي تلفاتو اصلي عامل ولټوئ بیا پریکړه وکړي او دملکې پیښو په اړه آزاد تحقیق وکړي بیا حکم وکړي ، اوس زموږ ماتې خوړلی دښمن ورسره مله میډیا او لاسپوڅي هڅه کوي چې دمجاهدینو هربرید په ملکیانو برید وبولي ، دوي پولیسوته هم ملکیان وای ، سکورټیانو او دامریکایي ځواکونو ساتونکوته هم ملکیان وایي ، دوي دکابل رژیم په حساسو اداروکې یا په خورا مضرو اداروکې کاروکونو ته ملکیان وایي چې داسې نده ، هرهغه څوک چې په هرنامه او هرځای کې دخپل دین او هیواد په ضد ولاړ ده اوله کفارونه حمایت کوي هغه هدف دی او ملکی خلک ورته ویل له هیواد او اسلام سره خیانت ده .

**مجاهدصاحب سلامونه**

**کیدای شي چې د قطر د دفتر په باره کښې معلومات را کړئ چې په دې دفتر کښې دطالبانو کم غړي شتون لري ډیره مننه . کریمی دهرات ولایت څخه.**

ځواب ـ په قطر هیواد کي داسلامي امارت په دفتر کي داسلامي امارت دسیا سي کمیسیون لوړ رتبه اعضاء موجود دي چي په خپل مسلک کي کامل بلدیت لري او په خپلو اړونده چارو کي داسلامي امارت دمشر تا به څخه تر هدایت اخستلو ورسته اجرا آت کوي.




مفتي ابو ماريه.........................................................................................

**که مجاهد د جنګ لپاره روژه ماته کړي کفارهورباندي شته او کنه ؟.**

-الاستفتاء: مجاهدينو روژه نيولي وه، غرمه کې جنګ له امريکايانو سره شروع سو، مجاهدين سخت تږي شوو اخيريو دوو ملګرو روژه وخوړله ،نو کفاره خو به نه پرلازميږي ؟المستفتي يو مجاهد .

الجواب حامدا و مصليا وبعد: په ياد شوي صورت کې په دغه مجاهدينو کفاره نه لازميږي البته قضاء شته

لمافى الخانية ۲۲۷/۱:وكذا رجل اذا كان بازاء العدو وهو يخاف الضعف على نفسه فله ان يفطر مقيما كان،او مسافرا .

وفى منحة الخالق على بحر الرائق ۴۹۱/۲:فان الغازي اذا خاف العجز عن القتال له الفطر ولو مقيما.

وفى الوالجية ۱/ ۲۲۷:الغازي اذا بارز العدو ويعلم يقينا أنه يقاتل العدو فى شهر رمضان،وهو يخاف الضعف على نفسه ،فله أن يأكل قبل الحرب سواء كان مقيما ،امسافرا

وفى رد المختار مع الدر المختار ۳/ ۴۲۲: وعوارض الصوم...الى ان يقال:فى الخلاصة :الغازي اذا كان يعلم يقينا أنه يقاتل العدفى شهر رمضان ويخاف الضعف ان لم يفطر افطر .والله تعالى اعلم بالصواب.

## مجاهدلپاره تیمم

الاستفتاء: محترم مفتي صاحب موږ په یوه کرونده کې ځانونه پټ کړو ، په داسې حال کې چې کلي ته امریکایان راغلي وو ، موږ ته به غالبا اوبه نږدې وي ،خو موږ ځکه نشو ورتلای اونه مو تلاش کولی شوای چې خلکو یاهم دښمن لیدو ، نو موږ په تیمم لمونځونه اداء کړو نو دالمونځونه خو به بیرته اعاده نه غواړي ،ځکه موږ اوریدلي چې د تیمم کوم عذر من قبیل العبادوي هغه بیرته اعاده غواړي ؟ یو سائل

الجواب :په ذکرشوي صورت کې دغه تیمم صحیح دی ، اودلمانځه اعاده نشته. اومذکوره عذریعني خوف من العدو که څه ظاهرمن جانب العباد دی لکن په حقیقت کې من جانب الله تعالی ده.

في ملتقی الابحر ۵۸\۱ يتَيَمّم الْمُسَافِر وَمن هُوَ خَارج الْمصر لبعده عَن المَاء ميلًا أَو لمَرض خَافَ زِيَادَته أَو بطؤ برئه أَو لخوف عَدو أَو سبع .

وفي رد المحتار ۲۳۷\۱ باب التيمم : م ش. ثم اعلم أنه اختلف في الخوف من العدو هل هو من الله تعالى فلا إعادة، أو من العبد فتجب؟ ذهب في المعراج إلى الأول، وفي النهاية إلى الثاني، ووفق في البحر بحمل الثاني على ما إذا حصل وعيد من العبد نشأ منه الخوف فكان من قبل العباد ، وحمل الأول على ما إذا لم يحصل ذلک أصلا بل حصل خوف منه فكان من قبل الله تعالى لتجرده عن مباشرة السبب وإن كان الكل منه تعالى خلقا وإرادة. قال: ثم رأيت في الحلية صرح بما فهمته وأقره في النهر وغيره،.

## که یومجاهد ددښمن له ویرې په اشاره لمونځ وکړي نوبیرته یې اعاده شته اوکنه ؟

پوښتنه: محترم مفتي صاحب !موږ په یوه داسې سیمه کې ؤ چې دښمن راته نږدې ؤ ،موږ لمونځ په اشاره وکړ دغه لمونځ موصحیح شوی اوکنه ؟ یعني اعاده غواړي اوکنه ؟

الجواب:: په ذکرشوي صورت کې ددغه لمانځه اعاده نشته.

في منحة الخالق على البحر الرائق ۱۵۰\۱ شرائط التيمم: وفي منية المصلي لو صلى

بالإيماء لخوف عدو أو سبع أو مرض أو طين لا يعيد بالإجماع.

وفي تبيين الحقائق ۱۰۱\۱ باب شروط الصلوة م ش: ولو خاف أن يراه العدو إن قعد صلى مضطجعا بالإيماء، وكذا الهارب من العدو راكبا يصلي على دابته،

## قرآن کريم په جيب کې ګرځول څرنګه دي؟

-الاستفتاء:له ډيرو مجاهدينو سره په جيب کې قران کريم وي نوله ماسره داپوښتنه پيدا شوه چې په جيب کې دقرآن کريم ګرځول څرنګه دي؟ زه هم يو وړوکی قران کريم راسره ګرزوم ؟ کليم الله.ربيع الاول۱۴۳۴

الجواب حامدا ومصليا وبعد:قرآن کريم په جيب کې ګرځول چې په مستقل غلاف کې وي پروانه لري، خوبيت الخلاء ياقضاء حاجت ته تلل ورسره مکروه دي..

لأن النبي صلى الله تعالى عليه وسلم(كان اِذادخل الخلاء وضع خاتمه ) [الحديث] أخرجه أبوداؤد.

وفى الموسعة الفقهيّة ۷/۳۸:ذهب الحنفيّة والحنابلة،وهوقول الحسن وعطاء والشعبي والقاسم ،والحكم،... الى انه لابأس ان يحمل الجنب أوالمحدث المصحف بغلافه ،اومع حائل غيرتابع له،لأنه لايكون ماساله فلايمنع منه كمالوحمله فى متاعه،ولأن النهى الواردانماهوعن المس ولامس هنا ،وقال:الحنفيّة:فلوحمله بغلاف غيرمخيط به،اوفى خريطة وهى الكيس أونحوذلک لم يكره.

وفى ردالمحتارمع الدرالمختار۱/ ۳۴۷-۳۴۸ :ويحرم به أي:بالاكبروبالاصغرمس المصحف... الابغلاف متجاف غيرمشرز قال:علامه الشامي رح تحته أي:غيرمخيط به وهوتفسير للمتجافى... فالمرادبالغلاف ماكان منفصلا كالخريطة وهى الكيس ونحوها لأن المتصل بالمصحف منه الخ. والله تعالى اعلم بالصواب.

# دخبرلیکنې ژورنالستیک آرونه:

## دخبراوغیر خبر ترمنځ توپیر:

(پنځمه برخه) (شکورشفق)

(ډاکتر یونس شکرخواه) وایې چې لکه څنګه چې خبر پیدا کول او پسې ګرځیدل له ستونزو نه ډک وي ،همداسې ورته خبري چوکاټ جوړول او پدې چوکاټ یا قالب کې اچول هم له کړاونونه ډک وي ،دلته به دخبر سبکونه یا قالبونه یو څه په تفصیل سره ولیکو چې دخبر لیکونکیو لپاره دخبر لیکلو ژورنالستیکه چاره اسانه شي.

۱-هرم ډوله سبک :(Inverted Pyeamid)

۲-تاریخي سبک(Chaonoloygicalstyle)

۳-له لیډ سره یوځای تاریخي سبک (Combiation style)

۴-دحیرانونکې پای لرونکی سبک (Surpriseendiny)

---

( **۱**)-**هرم ډوله سبک** :پدې ډول سبک کې دخبر پیل دمهمو او جالبو ټکو څخه کیږي ،یعني دخبر په لومړي پراګراف کې مهم مواد وړاندې کیږې او همداسې نور مواد دارزښت له مخې یو په بل پسې راوړل کیږي آن چې پای کې یې داسې بیان راځي چې موخه ورته وایې ،لاندیني شکل کې به وګورئ چې دخبر پای کې هغه ټکي کاریږي چې لږه پاملرنه ورته کیږي !



حقیقت کې د هرم ډوله سبک په چوکاټ کې وړاندې شوې خبر ته ډیرو مهموټکیو ته لومړی پام اړول کیږي، چې د دې سبک شاته یو تاریخي ارزښت پروت دی ،دا سبک هغه مهال ډیر کاریده چې په نړۍ کې د تلګراف اختراع وشوه ،خبریالانو د امریکا د کورنۍ جګړې پر مهال د اړیکو د پرې کیدو له ویرې لومړی د خبر اصلي ټوکي مخابره کول او د ارتباط د ټینګتیا په په صورت کې به یې وروسته تفصیل وړاندې کاوه ،په هر حال په هماغه ډول چې ویل شوي پدې سبک کې لیدل یا د خبر ټوکي او په ترتیب سره نور ټکي د مهموالي اصل ته په پاملرنه سره لیکل شوي.

د خبر هرم ډوله سبک دوه موخو لپاره کارول کیږي !

الف:که لوستونکی د خبر له پیل سره مینه و ښایي تر پایه به یې په چټکۍ سره د خبر دلوستلو تلوسه پیدا کیږي وخت به یې مصرف نشي.

ب:په طبعي ډول د پیښو په اړه د خبر وړاندې کول لکه چې خلک یې په خپلو منځو کې همدا ډول کاروي ،پدې سربیره دوه نورې ګټې هم لري ،الف:د خبر محتوی چې په لیدلو کې ځاییږي نو ټایټل جوړول هم اسانیږي.

ب:د مطالبو د ډیروالي پر وخت چې ځینې برخې یې کمیږي نو اصلي مطلب پر خپل ځای پاتې کیږي او د خبر د نوي والي له کبله ورځپاڼه کې نورو مطالبو ته هم ځای پاتې کیږي ،دا چې په ورځپاڼو او مجلو کې اوږده اوږده مطالب لوستونکي ستومانه کوي او خلک د پخوا په نسبت کم وخت لري ترڅو اوږده مضامین ولولي نو د ورځپاڼو لیکونکیو ترمنځ دا سبک ډیر منلی او د خوښې وړ دی.

د هـــرم ډولـــه ســـبک کارونـــه : خبریـــالان او ورځپاڼـــه لیکـــونکي د دې ســـبک نـــه د سـیمینارونو ،غونډو ،ویناوو او ورځنیو موضـوعاتو څخه د خبر جوړولو پـه مهـال ګټـه اخلـي ،خوله بده مرغه ځینې خبریالان د مرکې پر مهال په ناپوهۍ سره د همدې سبک په ډول مهمې پوښتنې د مرکې په سرکې تر سره کوي پداسې حال کې کیدای شي دا کار د مرکې لوری وا ړوي او مرکه کوونکی ښایي داسې ځوابونه ورکړي چې سره تړلې وي.

## (۲)تاریخي سبک :

د تاریخي سبک د پیژندنې په باب (ډاکتر شکرخواه )په خپل کتاب کې لیکي چې دې سبک کې د هرم ډوله سبک پر خلاف موضوعات د پیښیدو په لحاظ د خبر په متن یا اخر کې راوړل کیږي ،پدې سبک کې خبریال لکه د یوه قاضي رول نه لوبوي چې پریکړه وکړي ، کوم خبر لومړی او کوم خبر ورپسې ولیکي ،پدې توګه تر ډیره بریده په خبر کې د خبریال د نظر د ځایه

کولو مخه نیول کیږي ،او همدا رنګه د هرم ډوله سبک پر خلاف مطالب په تفصیلي ډول وړاندې کیږي ،خو تاریخي سبک هم لیږ لري چې خبر په سرکې لیکل کیږي خو دالیږ ځکه لیږ نشو بللای چې ډیر وي خو مطلب نشي افاده کولای.

دلته مهمه دانده چې کوم ټکي مخکې او کوم وروسته راوړل شي ،مهمه داده چې د په زړه پورې لاربښوونو نه کارواخستل شي ،داموضوع دفورمول نه په ګټه اخستنه توپیرلري ،خبر لیکونکي باید تل فورمول ته د شک په سترګه وګوري ،ځکه فورمول کارول دخبر نوې والی له نابودۍ سره مخ کوي.

ددې نه وړاندې چې لیږ سره یوځای تاریخي سبک مطالعه کړو باید دتاریخي سبک نه چې دګزارشونو ،مقالو تحقیقاتو او دغونډو څخه دخبر په جوړولو کې کار اخستل کیږي مطالعه اړینه ده.

(**۳**) **لیږ لرونکی تاریخي سبک**: داډول سبک څنګه چې له نامه نه یې ښکارې د پورتنیو دوو سبکونو یوځای کول دي او یوازې دښاري رپوټونو او پیښو په اړه کارول کیږي ،ددې لپاره چې پخپل ذهن کې ددې سبک لپاره یو انځور پیدا کړو بهتره ده وو ایو چې دتاریخي سبک ډول چې پکې مطلب له پیل نه تر پایه پورې د پیښو د پیښید و په ترتیب سره لیکل کیږي په لاندې شکل سره به وي:




دلیږ ډول لرونکی تاریخي سبک شکل د پورتني شکل سره په لږ توپیر:

لی



لیږ لرونکی تاریخي سبک دورځپانه لیکونکیو په ځانګړې ډول دهغو په منځ کې چې ښایي رپوټونه او پیښې را اخلي ځانګړی ځای لري.

(۴)-**دحیرانوونکې پای لرونکی سبک** : دا سبک تر ټولو خوږ سبک دی پدې سبک کې دپیښې قلف دخبر په پای کې خلاصیږي او لوستونکی حیرانوي ،دا سبک ددې لپاره دورځپاڼولیکنې په ادبیاتوکې رامنځته شوچې دلوستونکې کومې لټونې ته ځواب ووایي ،یعنې دحیرانوونکې پای لرونکی سبک څخه هغه وخت کار اخستلای شو چې دې پیښې کې دحیرانۍ موضوع اخښل شوي وي.

## دخبر تخنیکي جوړښت :

دژورنالیزم دفن پوهان یا استاذان دخبر تخنیکي جوړښت کې (۳)برخې اړینې بولې ،دوئ فکر کوي چې خبر ددې دریو برخو څخه په غیر نشی جوړیدلای ،خود(ژونالیزم مطالعه )کتاب مولف (ایس ایم شاهد )بیا لیکې چې یو خبر له (۴)څلورو برخونه پرته په تخنیکي لحاظ نشي جوړیدای ،

(۱)-سرلیک یا (Lead)

(۲)-دخبر پیلامه (Intro).

(۳)-دخبر متن (Body)

(۴)- دخبر پای یا شالید (Endiny)

خو عام افغان ژورنالستان که دا څلور مذکورتوکې دیوه خبر جوړونې لپاره اړین بولې نود(lead )کلمه دخبر دپیلامې په معنی بولې نوځکه وایې چې خبر کې یو سرلیک ،لیږ یا پیلیزه ،متن او شالید ضروري دي.

دخبر سرلیک یا ټیټر:په نوې ژورنالیزم کې سرلیک دخبر هغه عنوان دی چې دخبر دشروع لپاره ټاکل کیږي اوزړه راښکون پکې هغه وخت پیدا کیږي ،چې خورا ډیر مختصر اودپیغام لرونکی وي ،دسرلیک په لیکلو کې هڅه کیږي چې دامکان تر حده ډیر لنډ وي او خبري جوړښت کې سرلیک لیکل تر ټولو ستونزمن کار دی ،او دسرلیک لیکل دهغه چا کاروي چې پدې فن کې ښه کلنه پخه تجربه ولري.

دیوه ښه سرلیک لپاره لاندې مشورې په نظرکې ساتل پکاردي !

(۱)-سرلیک چې څومره لنډ وي په هماغه اندازه غوره دی.(۲)-سرلیک باید دکوټلو

لغاتو لرونکی وي .(۳ )سرلیک باید څرګند او دقیق وي .(۴ )-په سرلیک باید دتکراري جملوله راوستلو نه ډډه وشي .(۵ )-په سرلیک کې باید منفي او سواليه جملې ونه ليکل شي .(۶ )-که سرليک فعل ولري نو ښه دی ،خوچې فعل په مناسب ډول وکارول شي .(۷ )-په سرلیک کې باید لغاتو نه مات نکړای شي .(۸ )سرلیک باید له لیږ څخه راوستل شي ،یعنې په سرلیک کې باید له ټولو امکاناتو نه کار واخستل شي ،له شعري ذوق نه هم کولای شو پکې ګټه پورته کړو ،(ډاکتر شکرخواه ) ددې لپاره چې یو ایرانی ژورنالیست دی داسې بیلګه خپل کتاب کې ورته راوړې :که فرض کړو چې تېره شپه تهران کې باران شوی ،ددې خبر لپاره څه ډول سرلیک ولیکو ؟هغه به داسې جوړ شي :

ټول تهران تېره شپه ترباران لاندې و ،تهران تیره شپه داوبو په باران ولامبل ،آسمان تیره شپه په تهران وچاودید ،تهران تیره شپه د سخت باران لاندې ساه وایستله !

ایس ایم شاهد )د سرلیک یا تېتېږ ډولونه خپل کتاب کې پدې ډول راخلاصه کوي :

(۱ )-داوږدوالي له مخې :یو کالمه ،دوه کالمه ،درې کالمه ،څلورکالمه ،پنځه کالمه ،شپږ کالمه ،اووه کالمه او اته کالمه سرلیک .

دورځپاڼې هر مخ په اتو برابرو برخو چې کالم ورته وايې ویشل کیږي ،ددې لپاره اوږد سرلیک داتو کالمونو برابر وي .

(۲ )-دبڼې له مخې :لېبل سرلیک ،ضمني سرلیک ،بغلي سرلیک ،ځلیدونکی سرلیک او داسې نور...........

(۳ )-د جوړښت له مخې سرلیک :الف – منزل لرونکی سرلیک لکه یو منزله دوه منزله ...ب -ځوړنده حاشیه ،ج-کش شوی خط (خط کشیده )سرلیک .

(۴ )دډول له مخې :لکه قولي سرلیک (Quotation Lead ) ،خوډاکتر شکرخواه بیا داسې وايي چې : (۱ )دیوې کرښې سرلیک :چې څنګه یې له نامه ښکاري سرلیک په یوه کرښه کې ولیکل شي لکه داسې :

((************************** ) )

(۲ )ددویا څو کرښو سرلیک چې کله کلمې زیاتې وي بیا هم په دوو کرښو کې ځایه شي لکه دې شکل کې :

[[**********************]]

[[**********************]]

(۳ )ترازوډوله سرليک :دا سرليک دترازوپه ډول دی يوې او کله بلې خواتـه تمايـل کـوي لکه پدې شکل کې:

[[ ******************]]

[[***************]]

(۴ )هرم ډوله سرليک :ددې سرليک ډول دهرم بڼې ته ورته اوتوکي پـه کـې پـه ترتيـب سـره دپورتنې لورڅخه ښکته لورته ليکل کيږي لکه پدې شکل کې:

*************************

*********************

***************** *

************

*******

*****

***

**

*

(۵ )مثلث ډولـه سـرليک :دا ډول سـرليک دهـرم دبڼې پـرخلاف يـا عکـس ديـوې کلمـې لـه ليکلوپيل کيږي اودمثلث په ډول پای ته رسيږي لکه پدې شکل کې:

*

***

*****

********

*****     *****

************ *

مثلث ډول سرليک

## دخبر پیلامه :(Intro Lead)

دخبر پیلامه یا لیډ دخبر ډیره مهمه برخه ده چې دهر خبر دبري رازتر ډیره حده په پیلامه کې نغښتی دی ،په انګلیسي کې ورته (Intro )ویل کیږي چې د(Introduction )نه مخفف شوی دی ،ځنګه چې دهر یوه هیواد لوړیتوبونه بیل بیل وي نو ضروري نده چې هر خبر لومړی کرښه دې په هر هیواد په زړه پورې وي ،بلکې پیلامه دهرې ژبې لپاره یو بیل ارزښت او معیار لري.

خبرعموما چې دسرلیک او شالید په ګډون څلور برخې لري ،باید ووایو چې داهغه خبر دی چې چاپي رسنۍ یې خپروي ځکه برېښنایي رسنۍ سرلیکونه نلري ،هلته دسرټکي مهم دي اوهغه پیلامه یا لیډ کې تر سره کیږي ،نوویلای شو چې دبرېښنایي رسنیو خبریوازې دوه یا درې برخې لري او سرلیک لیکل ورته ضرورندې. دژورنالیزم دفن ځینې پوهان دبرېښنایي رسنیو لیډ یا پیلامې ددې ډول خبرونو سرلیک بولي خونور بیا داسې وایې ،ځنګه چې مو مخکې وویل چې داد (Introduction )څخه مخفف دی اودا دپیژندنې په معنی راځي ،هره خبري پیلامه اړونده خبري کیسه ،خبر یا پېښه لوستونکیوته ورپیژني.

دپیلامې په اړه ګڼ تعریفونه شوي چې څو یې پدې ډول دي:

(۱)دخبر لومړۍ جملې یا څولومړیو جملوته یې دخبر پیلامه وایې -(۲)لوستونکي په ناڅاپي ډول لاندې کول اولوستوته یې پام اړول راړول دخبر دپیلامې دنده ده -(۳)پیلامه دخبردهغې برخې یا برخو لنډیزدی یعنې دخبردپیلامې په اوریدویا لوستواوریدونکی یا لوستونکی پوهیږي چې خبر دڅه په اړه دی ؟

پیلامه دخبر ډیره مهمه برخه ده،اودهرخبر دبري راز تر ډیره په پیلامه کې نغښتی دی ،څومره چې دیوه خبر پیلامه یا پیل ارزښتناک وي په هماغه اندازه یې اوریدونکي ګوري او اورې ،دجګړو په اړه راپورورکونکی خبریال پیلامه دخبروسله ګڼې اودهغوئ په آند که خبریال په هماغه لومړي سرکې په لوستونکې ددې وسلې ګوزار ونکړي نوداسې وګڼئ چې جګړه یې بایللې ده.

دخبرپیلیزه کې دخبردلیکلو کومه فارمولا یا کوټلې لاره نشته ،چې په مټ یې ټول خبریالان یوه پایله ترلاسه کړي بلکې له ګڼولارو کولای شوچې پیلزه ولیکو. همداسې دلیډ یا دخبردپیلامې داندازې په باب ژورنالستان ټول یوه خوله ندي ،ځینې وایې چې لیډ دې یوه جمله، ځینې دوه اونور یې درې جملې ضروربولې ،ځینو یې بیاد (۳۰ )څخه تر (۲۰ )تورو پورې دحروفو په حساب دلیډ اندازه ټاکلې ،خوعام پوهان دخبر پیلامې لپاره کومه کوټلې اندازه ضرورنه بولې، بلکې دخبر

دارزښت او لوی والي په پرتله يې ليکل اړين بولي اوبس.

په عموي توګه دخبر دليډ لپاره دالانديني اصول په پام کې نيول پکار دي:۱-ليډ يا پيلامه دخبردډول له مخې ليکل پکاردي ،۲-لومړی کوښښ دا سي ليکل کيږي چې لوستونکيوته خبرپه زړه پوري شي ،دا سې نه چې دلومړيو کرښو په لوستلو زړه توری شي ،۳-ځومره چې شونې وي دخبرپيلامه دې لنډه وي ،۴-په پيلامه کې دخبر د(پايلې)دراوړلو هڅه کيږي ،۵-مدير خپله ټوله پوهه کاروي او دپيلامې دښه والي هڅه کوي ،۶-دپيلامې په پيل کې دخبر دښه والي مزاج په نظر کې نيول کيږي ،پدا سې شکل چې که چيرته دا خبر دکوم چا دمړينې دپيښې يا بل کوم زيان په اړه وي ،نو پيلامې کې هم افسوسناک او غمجن کلمات راوړل کيږي ،چې دې کې بيا دخواخوږۍ دلهجې خپلول پکار وي ،دارنګه که کوم خبر کې دټوکو او خندا اړخ وي ،نو پيلامه کې يې هم دخندا وړ کلمات راوړل کيږي ،که خبر معياري وي نو معياري کلمات راوړل کيږي او خبريال بايد دخبردليکلو پروخت دخبر خصلت (طبيعت )اعتدال (جذبه )او ټوليز مزاج ته ځانګړی پام وکړي.

دانسان دلچسپي دخبرونو دليکلو پرمهال د(پيلامې )رنګينی ته پام اړولو او په زړه پوري والي ته زياته وي ،دژوندی پيلامې کرښې دغسې خبرونو ته ښکلا ورکوي ،دتوضيحي پيلامې دليکلو پروخت دچا احساسات يا جذبات ژوبلول نوې پکار ،ځکه خبر يا ورځپاڼه دټولنې عکاسه او نبض نيونکې ده. په مکرره وړانديز دادی چې دخبر پيلامه بايد دومره په زړه پورې وي ،چې لوستونکی دټول خبر لوستلو ته اړکړي او ترپايه يې له ځانه سره وساتي.

دخبر دليډ يا پيلامې دليکلو بيلابيلې لارې: دخبرپيلامه ليکل يو پنځونه ده او تر ډيره ځايه دتقليد پرځای پر توليد ډډه وهي ،ديوه خبر پيلزه په شلو ديرشو لارو ليکل کيدا ی شي ،خودا هر څه دژورنالست له دلچسپی سره اړه لري او علاقه يې پکې مرکزي رول لري ،ښاغلي (ايس ايم شاهد )يې ليکلارې يا ډولونه په لاندې ډول بيا ن کړي دي:

دخبر دليډيا پيليزې ډولونه:

( **۱**)**دلومړيو کرښو لنډيز** :هغه دی چې دلومړيو کرښو داړوند خبر حال د(لنډيز) په ډول راوړي ،يعنې په سرسري ډول دخبر پايله بيانيږي ،چې په رښتينې ډول لنډ وي.

( **۲**)-**تمثيلي پيلامه** :هغه پيلامه ده چې پکې رنګين عبارتونه وکارول شي، او دخبر دجوړښت دمجازي يا اصطلاحي جوړولو هڅه کوي ،پدا سې پيلامو کې ادبي وړتيا ډيره روښانه وي ،رنګيني پيلامې دليکنې لپاره دتخيل او ادبي وړتيا اړتيا شته ،دډراماييي انداز

ښه او محتاط استعمال اړین دی.

**(۳)نادره پیلامه** : هغه ده چې پکې روښانه ځانګړنه وي او دنوي طرزاونډرت عناصرپکې زیات وي لوستونکی ددغسې نا اشنا والي نه ډیر خوند اخلي.

**(۴)- په نقل قول ولاړه پیلامه** :دغه ډول پیلامې عموما دهمدغوکسانو په ویناوواوخبرو پیلیږي لکه: دبریتانیې دسفارت مخې ته ننني چاودنه دد طالبانوله لوري وشوه ،طالبان کوښښ کوي چې تل داسې دیپلوماتیک ځایونه په نښه کړي....داخبره داسلامي امارت ویاند ذبیح الله مجاهد دخبریالانو یوې غونډې ته دکنفرانس پرمهال وکړه.....

**(۵)-پوښتونکې پیلامه** :داډول پیلامه عموما لکه له نامه چې یې ښکاري په یوې پوښتنې پیلیږي ،لکه:دولسي وګړو دشهادت لړۍ به ترڅو روانه وي ؟یا ددې نا امنیو پړه دچا په غاړه ده؟.

**(۶)-مکاني پیلامه** :داهغه ده چې پیلامه یې دخبروپه بڼه وي ،یعنې دیوچادخبرومهمه برخه دپیلاموپه کرښو کې استعمال شي.

**(۷)-شالیدلرونکې پیلامه** :عموما دغه ډول پیلامې دیوې پیښې په مخینه یا شالید پیلیږي ، لکه دروغتیا وزیردري کاله مخکې دروغتونو دحالت دښه کیدوموضوع دخپل کار د لومړیتوبونو په توګه په ګوته کړې وه ،خولاهم ډیری ناروغان دروغتونولدې اوسنی حالت اود ځنباک داوبواو درملو دنه شتون نه سرټکوي.....

**(۸)-پرتلیزه پیلامه** :پدې پیلامه کې دپرتلنې له لارې شته توپیرونه په ګوته کیږي،لکه: کرزی دیوې خوا طالبانو ته دسولې بلنه ورکوي او دبلې خوا دطالبانو په خلاف دجنګ نوې جبهې خلاصوي.

**(۹)نابیره لیډ**:داهغه لیډ دی چې په نابیره اوغیر عادي پیښولیکل شوی وي ،لکه یوې وړې مرغۍ دیوې بوینګ الوتکې الوتنه له ځنډ سره مخ کړه.

**(۱۰)-بیاني پیلیزه** : داهغه ده چې دفطرت یا پیښو دمنظرو بیانولو هڅه پکې شوي وي

**(۱۱)- کارتوسي پیلامه** :داهغه ده چې دخبر لومړۍ کرښه په درې، څلوریازیات نه زیات پنځوکلمو بیان شوی وي ،مګرهغه څو کلمې ډیرې اغیزمنې وي.

**(۱۲)-غیر مسلسل پیلامه** : داهغه ده چې په هغې کې له غیر ضروري ځنډنه پرته دیوه خبر دبیانولوهڅه کیږي ،پدې ډول پیلاموکې لنډې کلمې کارول کیږي، لکه دبریښنا قوي وړانګه ،په لوړغږ ویدیل ،دیوالونه پرله پسې ډول رالویږي ،دمرګونوبازارتود شوی ،یعنې دکومې ناڅاپې پیښې ،زلزلې یا سیلاب ...دکیفیت دښه کیدولپاره دڅوحیرانوونکیوکلموپه پیلولوخبر شروع شي . نوربیا.........

# د شهید مولوي عبدالسلام ژوند ته لنډه کتنه

عبدالرؤف حکمت

دطالبانو داسلامي تحریک دبریالیتوب ، استقامت او ثبات یو راز دا بلل کیږي ، چې دا تحریک دمعاصر پُرفتن دوران له منځه دالله تعالی دهغو ترټولو صالحو او نیکو بندګانو څخه جوړ تحریک دی چې په اوس وخت کې یې خورا لږ مثالونه موندل کیدای شي ، دا تحریک چې لویه برخه یې ددیني مدارسو طالب العلمان او دیني علماء دي ، له همدې څخه څرګندیږي چې په دې تحریک کې دمعاصر دور ترټولو متدین ، پاک نفسه او سپیڅلي خلک راجمع شوي دي ، ددیني علومو دطالبانو په اړه سترمجتهد امام مالک رحمه الله فرمایي ( که چیرې دقرآن او احادیثو دطالبانو په منځ کې هم اولیاء الله نه وي ، نو معنی یې داده چې دځمکې په مخ اولیاء الله شتون نلري )

دطالبانو په اسلامي تحریک کې ډیر داسې ګمنام اشخاص تیر شوي او لا اوس هم شته ، چې اعمالو ته یې په پام سره بې له شکه داولیاء الله حکم ورباندې کیدلای شي ، هغه دخدای تعالی دوستان چې ورځ په جهاد او دالهي دین په بې ریا او بې عوضه خدمت تیروي او دشپې دخدای تعالی حضور ته په سجده پراته وي ، که له یوې خوا دعلم ، تقوی ، دیانت او اخلاص بیلګې وي له بله اړخه دایثار ، شجاعت او جرأت مثالونه وي ، دالله تعالې دلارې دداسې صالحو لارویانو له جملې یو هم شهید مولوي عبدالسلام وو چې الله تعالی ورته د سیرت او صورت ښکلاوې په یورنګ ورکړې وې ، راځئ څو شیبې ددې شهید له ژوند او کردار سره پاته شو .

## پيدايښت او دژوند لومړني مراحل

مولوي عبد السلام اخندزاده دملامحمد صادق اخند زوی دمرحوم مولوي صالح محمد لمسی په قوم پښتون - بارکزی په۱۳۴۲د سرطان پر۱۵ دکندهار ولايت دنېش ولسوالۍ په شاويز کلي کې په يوه ديندار او علم دوسته کورنۍ کې زيږيدلی دی.

لومړنۍ زده کړې يې په خپل کور کې ترسره کړي دي ، او دابتدائي زده کړو په شمول يې ډيرې زده کړې له خپل پلار او ترونو مولوي عبد الخالق اخندزاده صاحب او مولوي عبد اللطيف اخندزاده صاحب څخه ترسره کړي دي.

ددوی کورنۍ له ډيره وخته دعلم او دينداری کور پاته شوی او تر ۷ پيړيو يې نيکونه علماء پاته شوي دي ، مولوي عبد السلام لا دنوي ځوانۍ په مرحله کې وو چې روسي يرغلگرو په افغانستان بريد وکړ ، او دعمومي هجرت په مهال ددوی کورنۍ له خپل اصلي ټاټوبي څخه دپاکستان سرحدي ښار چمن ته کډه شول ، دلته مولوي عبد السلام صاحب خپلې زده کړې په نورالمدارس فاوقيه مدرسه کې پيل کړې او خپل ډيرې ديني زده کړې يې همدلته ترسره کړې ، نوموړي دحديثو دوره په چمن کې د شيخ الحديث مولوي محمد علي صاحب په مدرسه کې ترسره کړه او همدلته يې دحديثو سند ترلاسه کړ.

## دروس ضد جهاد کې شرکت

مولوي عبد السلام ځوان وو چې په افغانستان کې د کمونيزم په خلاف جهاد پيل شو ، نوموړي چې له جهاد سره بې کچې مينه درلوده ددينې تعليم سره سره يې په جهاد کې هم شرکت کاوو ، نوموړی له پيله ترپايه په کندهار کې دحاجی ملاشيرين اخند په مشرۍ دطالبانو په لويه جبهه کې وه ، دا جبهه چې دکندهار ښار په شاوخوا سيمو لکه محله جات ، ارغنداب او ډنډ ولسواليو کې يې فعاليت درلود ، مولوي عبد السلام هم په کې ديوه مجاهد په صفت دنده اجراء کوله ، دډاکټر نجيب دحکومت په وروستيو کلونو کې نوموړي د کندهار ـ کابل په لويه لاره د جبار او دوستم مليشو په ضد جگړو کې هم شرکت درلود ، مولوي عبد السلام له ديني زده کړو سره په ځنگ کې ترهغه مهال جهاد ته ادامه ورکړه ترڅو کمونيستي واکمني نسکوره شوه.

## د هرج و مرج په دور کې

دتنظیمي خپل منځي جګړو او ګډوډۍ په دور کې مولوي عبدالسلام صاحب چې دغه مهال فارغ عالم وو ، دکندهار ښار ته نږدې دامان ولسوالۍ په خوشاب سیمه کې یې یوه مدرسه جوړه کړه ، او د دیني علومو تدریس یې پیل کړ ،دغه مهال نوموړي لسګونو مشرانو طالبانو ته دیني کتابونه تدریسول ، په دې سربیره څرنګه چې دغه مهال دافغانستان دنورو برخو غوندې په کندهار کې عامه فساد او هرج ومرج پیل شوی ، خپلسرو قومندانانو خلک ځورول ، له خلکو یې پیسې اخیستې او یوه ستر اجتماعي فساد ته یې لاره هواره کړې وه ، مولوي صاحب دخپلې سیمې خوشاب په سطحه دمنکراتو دمخنیوي لپاره هڅې پیل کړې ، او په دې لړ کې یې په خپله سیمه کې څو ځله سرکشو او بدکاره خلکو ته دناروا اعمالو له امله سزاګانې هم ورکړې ، او دخپل توان په اندازه یې دخپلې سیمې په سطحه دښکاره منکراتو مخه ونیوله ، مولوي صاحب دطالبانو داتحاد او نظم لپاره هم هڅې پیل کړې او له ډیرو مشرانو او دیني علماء کرامو سره یې لیدنې کتنې ترسره کړې ، په همدې مهال دکندهار د ژړۍ دسنګ حصار په سیمه کې دملامحمد عمر مجاهد په مشرۍ دطالبانو تحریک پیل شو ، چې دپیل په ابتدایي شیبو کې مولوي عبدالسلام صاحب له خپلو ۷۰ تنه طالبانو سره له نوموړي تحریک سره مل شو .

## دطالبانو په اسلامي تحریک کې خدمات

د اسلامي تحریک دپیل په ابتدائي شیبو کې کله چې طالبانو د میوند په ولسوالۍ ولکه ټینګه کړه ، نو دمشرتابه لخوا مولوي عبدالکریم دمیوند دولسوال په حیث مقرر شو چې مولوي عبدالسلام صاحب یې دمرستیال په حیث دنده اجراء کوله .

تردې وروسته نوموړي په نورو عملیاتو کې هم برخه درلوده ، ترڅو چې کندهار ولایت په بشپړ ډول د طالبانو لخوا ونیول شو ، دکندهار له فتحې وروسته مولوي عبدالسلام لومړی دکندهار دهوایي ډګر دمسؤل په حیث وټاکل شو او وروسته دکندهار دامنیه قومندان په حیث مقرر شو .

دغه مهال دکندهار امنیه قومنداني دټولو جهادي تشکیلاتو مرکز بلل کیده او له وظیفوي اړخه یو مهم مقام وو او له همدې امله خو داسلامی تحریک مشر ملامحمدعمر مجاهد مولوي عبدالسلام صاحب چې دنوموړي خورا زیات اعتماد وړباندې وو او خورا

نږدې تعلقات او تعارف یې ورسره درلود دکندهار دامنیه قوماندان په حیث وټاکه.

دغه مهال مولوي عبدالسلام صاحب دکندهار دامنیه قوماندانۍ له رسمي وظائفو سربیره دامیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد دیوه نږدې مشاور او همکار په حیث هم دنده ترسره کوله، نوموړی جید عالم، بادرکه مجاهد، مدبر مشر او ترورو ستی کچې متقي او خدای ته تسلیم انسان وو، د ملامحمد عمر مجاهد لپاره یې د امین مشاور حیثیت درلود، دنوموړي ملګري وایي چې په دې مهال له مولوي عبدالسلام صاحب سره د ملامحمد عمر مجاهد دومره همیشني تعلقات اور اشه درشه وه چې اکثره وخت به چې ملاصاحب په خپل دفتر کې نه وو، نو ملګرو به یې دمولوي عبدالسلام صاحب په ځای کې پوښتنه کوله او ډیر وخت همالته پیدا کیده.

ملامحمد عمر مجاهد نوموړی دتیرجهاد له وخت څخه پیژاند، دنوموړي د علم، دیانت، تقوا او اجتماعي درک په اړه یې له نږدې معلومات درلودل، نوځکه یې دشهید مولوي صاحب منزلت پیژاند او په قدر ورته قائل وو.

## دمولوی عبدلسلام صاحب شهادت

په ۱۳۷۴ هـ ش کال کې کله چې دهیواد په لویدیځ کې دهرات واکمن تورن اسمعیل خان لومړی په ګرشک برید وکړ او وروسته داسلامي تحریک مجاهدینو شکست ورکړ، او دفراه ولایت ته یې په شا کړ، دجګړو په همدې لړۍ کې په لویدیځ کې دطالبان عمومي نظامي قوماندان ملامحمد اخند زخمي شو، په دې مهال مولوي عبدالسلام په خپله له یوشمیر مجاهدینو سره د جګړې لومړني خط ته لاړ، چې په همدې جهادي سفر کې نوموړی دفراه ولایت د آب خرما په سیمه دخوست په دره کې له دښمن سره په جنګ کې په شهادت ورسید.

## دشخصیت په اړه یې

شهید مولوي عبدالسلام صاحب داسلامي امارت په سطحه یو له هغو کسانو څخه وو چې په بې ساري علمي استعداد او تقوی یې شهرت درلود، نوموړي ته الله تعالی په علمي استعداد او سیاسي درایت سربیره خورا متشرع شخصیت هم ورکړی وو، دنوموړي ملګري او متعلقین اوس دده د تواضع، خوش اخلاقۍ او حسن تعامل یادونه کوي، همدا وجه وه چې نوموړی یې په ډیر کشر عمر کې د ډیرو زړونو محبوب ګرځولی وو

، او دخپلې سيمې په سطحه يې بيساری محبوبيت او نفوذ درلود .

دنوموړي تره مولوي عبداللطيف اخندزاده صاحب چې مولوي عبدالسلام يې له کوچنيوالي شاګرد پاته شوی وايي ، چې مولوي صاحب دتقوا او ديانت له اړخه يوبې جوړې سړی وو ،نوموړي وايي دمولوي صاحب دری صفات خورا ښکاره وو هغه داچې نهايي تقوا دار وو ، شجاعت يې درلود او الله تعالى خورا ښه علم ورکړی وو .

دشهيد مولوي صاحب ددیانت او قرب الی الله اثار دنوموړي له شهادت نه وروسته هم وليدل شول ، هغه داچې کله دنوموړي جسد دجنګ له ميدان څخه هديرې ته راوړل شو ، نو د دفن په مهال يې دنوموړي اغوستی کوټ ترې ايسته کړ ، مګر ددې کوټ داسې خوشبويي پورته کيدله چې د جنازې ټولو خلکو احساس کړه له همدې امله خو دنوموړي همدا کوټ جنازې ته حاضرو خلکو ترخپل منځ ټوټه ټوټه کړ او له ځانو سره يې يو وړ ، چې دهرې برخې يې خوشبويي پورته کيدله.

دشهيد مولوي عبدالسلام پلار ملا محمدصادق اخندزاده وايي چې دنوموړي له شهادت څخه ۹ کاله وروسته يو وخت دده قبر ته ورغلم ، ګورم چې قبر يې لويدلی دی ، نو مې يو سهار وختي له ځان سره اراده وکړه ، چې دخلکو له راتګ وړاندې يې قبر جوړ کړم په همدې نيت مې قبر راوسپړه ، خو په دې وخت کې دمولوي صاحب جسد رالوڅ شو ، نوموړی وايي چې دغه مهال يې وليدل چې دمولوي صاحب جسد له ۹ کاله تيريدو وروسته هم نه دی خاورې شوی او داسې سالم پروت دی لکه په همدې شيبه چې دفن شوی وي .

دملاسيف الله اخند په نوم يو طالب چې له مولوي عبدالسلام سره يې ۱۵ کاله ملګرتيا کړې وايي ، چې نه يې يادیږي چې مولوي صاحب دې دجماعت لمونځ قضا ء کړی وي ، بلکې په هرډول حالاتو کې دجماعت دلمانځه سخت پابند وو ، نوموړي په ښه علم سربيره خورا ښه قرئت او حسن صوت هم درلود ، او په ډير زړه وړونکي ترنم به يې اذان کاوو .

دغه دالله تعالى صالح بنده په داسې مهال په شهادت ورسيد چې لا يې دځوانۍ عمر پای ته نه وو رسولی ، له نوموړي څخه يوازې يوه لور پاته ده .

انا لله وانا اليه راجعون

# د سیاسي بندیانو ډله ییزه وژنه

میوند سادات

دوروستیو راپورونو او دسیمه ییزو خلکو دوینا له مخي په روانه میاشت کي دکندهار ولایت په ارغستان ، بولدک او تخته پول ولسوالیو کي دوه دیرش(۳۲) تنه طالب اسیران ددغه ولایت دامنیه قوماندانۍ مربوط او سرحدي پولیسو له خوا په ډله ییزه توګه وژل شوي دي.

دعیني شاهدانو په وینا چي:شپږتنه بندیان دارغستان په بالاژړه کي ،اووه کسه شین نري کي اوپنځه تنه توره ګاره کي ،اته تنه دتخته پول ولسوالۍ په بوزوځوکۍ کي اوشپږتنه اسیران دبولدک ولسوالۍ په قرارګاکي دامنیه قوماندان (رازق) په شخصي زندان کي شهیدان شوي دي.

وژل شوي کسان لومړۍ په شخصي محبسونو کي شکنجه شوي اوبیاله بندخونوڅخه ایستل شوي په ډله ییزه توګه په بیلابیلوځایونو کي په شهادت رسول شوي دي.

سیمه ییزخلک وایي چي: داسیرانو په یادو شوو ډله ییزو وژنو کي دکندهاربرحاله امنیه قوماندان (رازق )لاس لري .رازق تردې مخکي هم عام خلګ اوطالبان ترنیولووروسته وژلي اوجسدونه یې په لیروځایونو کي غورځولي چي وارثان یې په میاشتومیاشتوله مرګ اوژوندڅخه ناخبره وي.

رازق دکندهارښاراوبولدک ولسوالۍ په شخصي زندانونوکي ،طالبان او دویش په مشهوربازاراومنډیې کي هغه تجاران چي نومړي(قوماندان )ته ټاکل شوی باج نه ورکوي په دغوزندانونوکي ساتي ،هغه کسان بیابیرته خوشي کوي چي ډیري پیسې ورکړي اودبیالپاره ټینګه ژمنه وکړي چي پرټاکل شوي وخت به معلوم رقم باج قوماندان ته ورکوي.

د سیمه ییزو خلګوڅخه مي اوریدلي چي دقوماندان رازق په شخصي محبس کي په وارواربندیانو ترشکنجولاندي ساه ورکړې ،حتی څوکیسې خومي داسي اوریدلي چي قوماندان رازق په مستقیمه لاربنوونه اوخپلولاسونودځینوبندیانوڅخه لاسونه اوپښې پرې کړي اوپه همدې ډول یې اسیران له ژونده بې برخي کړي دي.

دغه قوماندان دمځکو په غصب ، دمخدره موادواووسلوپه قاچاق ، اداري فسادا ودملي تجارانوپه تهديداووژنه هم تورن دی.

دعاموخلکوسره زورزياتی اودسياسي اسيرانوانفرادي اوډله ييزي وژني که ظاهرادقوماندان رازق له لوري ترسره کيږي ، خوواقعيت دادی چي دکندهارټول چارواکي په دغه وژنواوجنايتونوکي شريک دي ، ځکه دالومړی ځل نه دی چي بنديان وژل کيږي اويادولسي خلکوسره ناوړه چلندکيږي په ځلونوورته پيښي ددغه ولايت په مختلفوولسواليو کي ترسره شوي دي ، په ځينوسيموکي يې په غبرګون کي خلکولاريونونه هم کړي خونه يوازي داچي ګټه يې نه ده کړې بلکي همداخلک دطالبانودپلوۍ په شک لانورځورل شوي ، نيول شوي اوشهيدان شوي دي.بېلګه يې تېره مياشت ميوندولسوالۍ کي دمظاهره کونکووژنه اونيونه ده !چي ديرغلګرواوداخلي عسکرودهغه کرغيړن عمل چي دچاپې پرمهال يې يوه افغانه ميرمن وهلې اوپنځه تنه ولسي وګړي يې بې پلمې بنديان کړي وومظاهره وکړه.

دکندهارڅخه وروستي راپورونه ښيئ چي ددغه ولايت په مختلفوولسواليوکي داربکيانو ، خاديانواوسرحدي عسکرولخوادعلمياتوپرمهال دولسي خلکوسره خوراسخت چلندکيږي ، په دغه ولايت کي دکابل اداري دبيلابيلوارګانونو موظفوعسکرله لوري دولسي خلکودنيولو ، وهلو اووژلووحشيانه لړۍ روانه ده . دکابل دمنفوررژيم په ملکي اوپوځي ارګانونوکي تبعيض ، تعصب ، ډلبازي ، فساداوجاسوسي حاکمه ده ، ملي اوبشري ارزښتونه ، سياسي اخلاق ، نياواودملي ګټوبه نوم څه نه پکي پيژندل کيږي .

داسيرانوپه تېره دسياسي بنديانووژنه دبشري ، مدني اوجنګي قوانينوڅخه داسي ښکاره بغاوت دی ، چي په هيڅ ډول نشي توجيه کيدلای.دډيموکراسۍ عسکرچي دنړۍ په هره لويه اووړه پيښه کي دحقونواوقوانينوناري وهي دلته په مستقيمه اوغيرمستقيمه توګه داسي وحشي کړنوکي ښکېل دي اويايې ترپوزي لاندي ترسره کيږي، چي په نوروهيوادونوکي همداډول وحشت دځان لپاره دپوځي مداخلې اويرغل مجوزګڼي .

خوپه افغانستان کي بياهرڅه برعکس دي ، په پټه اوښکاره په انفرادي اوډله ييزه توګه سياسي اسيران وژل کيږي ، په زندانونوکي دسياسي بنديانوشکنجه کول اوپه کلونوکلونوبې محاکمې په بندکي ساتل عادي دودګرځيدلی دی او....

سید سعید

# جنـــګي جنايتونه

( جــــــــــــون )

دروان (۲۰۱۳ز) کـــال دجـــون دمیاشـــتي پرلـــومړۍ نیټـــه اشـــغالګروځواکونو دشپنیو عملیاتو په لړکي دارزګان ولایت دچنارتوولسوالۍ په لنګرسیمه کي دچاپې پرمهال یوملکي وګړی شهید کړی دی.

دجـــون پـــر۴مـــه دمیـــدان وردګ ولایـــت کـــي پـــه سلهاوو ولســـي وګړو دامریکـــایې یرغلګروپرضد لاريون کي دکابل- کندهارلاردترافیکوپرمخ وتړله ،خلګوورسته له هغه پـه مظاهره لاس پـوري کړچي پـه نـرخ ولسـوالۍ کـي يـې ديرغلګـروداډې څخـه ۸۰۰متـره ليـري دهغـواووه لسـوتنوملکي هيوادوالولـه جملې چي دغوځواکونونيـولي وودروژونـدي پاتـه کسانومړي هم وموندل .

لاريـون کونکودولسـي وګړودوژنکوامریکـايې عسکرودورسپارلویامحاکمې غوښـتنه کوله ،خلګوخپلي سوله ییزي غوښتني تکرارولې چي ناڅاپه دافغـان اردوپـه ډزوکـي دوه تنه مظاهره کونکي شهیدان اودرې ژوبل شول چي له امله يې مظاهره په تاوتريخوالي واوښته.

دمیـدان وردګـودوالي ویانـد عطاءالله خوږیـانـي ددغودروکسـانودوژني دتائیـدترڅنګ ویلي چي خلګوپه دې وروستیوکي دلته دشپږونوروولسي کسانومړي چي نیـوواکګرومخکي بندیان کړي ووهم پیداکړي دي.

ویل کیږي چي دنرخ په ځینوسیموکي خلګو په هغوځایونوکي چي یرغلګرڅه وخت پکي میشت شوي اواوسیدلي ، دخپلوورکوشوواوزنداني شووعزیزانو دجسدونودموندني پـه

موخه کینـدني پیـل کـړي دي ،ددې اوه لسو کسانو دجسـدونو دموندني څخه وروسـته هغـه کـورنۍ چې غـړي اوخپـل خپلـوان یـې یرغلګرونیـولي ډیرنـا قراره شـوي دي ځکـه دوی هـم فکرکـوي چې خدای مکړه دکـورنۍ زنـداني شـوي غـړي بـه یـې دلتـه یاهلتـه وژل شـوي وي اوبیاترخاورلاندي شوي وي.

دجـون پـر۴مـه دهـرات ولایـت د شینډنډولسـوالۍ دشـوزکي پـه سـیمه کـي داخلـي عسکرویوسپین ږیری هیوادوال شهید کړی دی.

دجون پـر۵مـه یرغلګروځواکونودشـپنیوعملیاتوپه لړکي داروزګان ولایت د چهارچینو ولسـوالۍ دخودپـه سـیمه کـي دچاپې پـه مهـال ددوسـپین ږیروپـه شـمول پنځـه تنـه ولسـي هیوادوال شهیدان کړي دي .

دجون پر۷مه رسنیو دکونړدوالي وحیدي لـه قولـه خبرورکړچي:ددغـه ولایت پـه مانوګي ولسـوالۍ کـي دیرغلګروپـه هـوایي بریـدکي ولسـي وګړوتـه مـرګ ژوبلـه اوښـتې ده ،پـه دغـه بریدکي درې تنه دیوې نجلۍ پـه ګډون شـهیدان شوي اوشـپږتنه چي دوې میرمنـي پکـي دي ژوبل شوي دي ،دوالي (وحیدي) له قوله داهم ویل شوي چي پـه دغـه سیمه کـي دبرید پـه مهـال مخالفین موجودنه وو او ټول زیان ولسي وګړوته رسیدلی دی.

دجون پر۸مه اشغالګروعسکرودبلخ ولایت د شولګرې ولسـوالۍ پـه جرسید سیمه کي چاپه وهلې ،دخلګوکورونه یې تلاشي کړي یوملکي وګـړی شـهید کـړی اویوبـل تـن یـې بنـدي کړی دی. دسیمه ییزوخلګوپه ویناچي یرغلګروځواکونودتلاشۍ پرمهـال مـالي زیـان هـم ورتـه اړولی دی.

دجون پر۸مه اشغالګرود ننګرهارولایت د چپرهارولسـوالۍ پـه کنډي بـاغ کلـي کـي درې تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

دجون پر۹مـه د بدخشـان ولایت پـدوردوج ولسـوالۍ پـه غچـان سیمه کـي دنیوا ککګروپـه بمبـارکي دوه ماشـومان شـهیدان شـو ي اوولســي خلګوتــه زیــات مــالي زیــان اوښــتی دی ،دبدخشان ولایتي چارواکوهم په دغه سیمه کي دکوچنیانووژنه تائیدکړې ده.

دجون پر۱۰مه د فراه ولایت څخه پـه ترلاسه شـوخبرونوکي ویـل شـوي چي:ددغـه ولایـت دبالابلوک ولسوالۍ اړوند دګراني په سیمه کې دداخلي عسـکرودډزوله املـه دوه تنـه ولسـي

وګړي(یونارینه اویوه میرمن )ژوبل شو ي دي.

دجون پر۱۲مه دنیواکګروځواکونودبمبارله امله دمیدان وردګ ولایت دسید اباد ولسوالۍ په پټان خېلوکلي کي څلورتنه ولسي هیوادوال شهیدان شوي اویودښونځي زده کونکی ژوبل شوی دی .

دجون پر۱۵مه د فراه ولایت دفراه ښار اړوند دشمالکاه په سیمه کي داخلي استخباراتي کارکونکویو۲۵کلن سپین ږیری (جلات خان )اودکلي ملاامام بندیان کړي دي.

دجون پر۱۵مه یرغلګروځواکونود میدان وردګ ولایت دسیداباد ولسوالۍ په پټان خېل کلي دحاجي ببرک پرکورچاپه وهلې ،مالي زیان یې ورته اړولی اوپه اخرکي یې دنوموړي حاجي صاحب دکورنۍ درې تنه غړي چي دخالدبن ولیدد لېسې زده کونکي ووبندیان کړي دي

دجون پر۱۵مه دبدخشان ولایت څخه په ورکړل شووراپوړونوکي ویل شوي چي:ددغه ولایت د وردوج ولسوالۍ په ځینوسیموکي داخلي عسکروخلګ له خپلوکورنوڅخه په زوراېستلي اودطالبانوپه مقابل کي یې مورچلونه پکي نیولي دي.

دجون پر۱۷مه اشغالګرود میدان وردګ ولایت دنرخ ولسوالۍ په چین زایوسیمي کي چاپه وهلې ،دتلاشۍ پرمهال یې خلګوته مالي تاوان رسولی اوبیایې درې تنه عام کلیوال له ځان سره دبندیانوپه توګه وړي دي.

دجون پر۱۷مه داروزګان ولایت مرکزترینکوټ اړوند دخورماپه سیمه کي نیواکګرودچاپې په ترڅ کي یوتن ولسي هیوادوال شهیدکړی اوڅلورتنه ملکي وګړي یې بندیان کړي دي.

دجون پر۱۷مه د فراه ولایت دبالابلوک ولسوالۍ دګراني په سیمه کي دداخلي عسکرودهاوان په ګولۍ یوه ښځه اوماشومه یې شهیده اویوه نجلۍ ژوبله شوې ده.

دجون پر۱۹مه دلوګرولایت د برکي برک ولسوالۍ په توکل کلاسیمه کي دیرغلګرودبې پیلوټه الوتکي په برید کي درې تنه ولسي وګړي چي پلي روان ووشهیدان شوي دي ،سیمه ییزوخلګورسنیوته ویلي چي په یادشوي برید کي وژل شوي کسان درې واړه عام کلیوال وو.

دجون پر۲۱مه دهلمندولایت د ګرشک ولسوالۍ په حیدراباد سیمه کي یرغلګرو دچاپي

پر مهال دیوا تیاکلن سپین ږیري په شمول پنځه تنه ولسي وګړي بندیان کړي دي.

دجون پر۲۲مه د نیمروزولایت ددلارام ولسوالۍ په بازارکي دداخلي پوځیانو په ډزوورو سته له هغه چي موټرېي دماین ښکارشویوه ښځه اویو سړی په شهادت ورسیدل.

دجون پر۲۲مه د ننګرهار یو تن قومي مشر امان خیري رسینوته وویل چي اربکیانوپي دکورنۍ یوغړی بې موجبه وژلی دی ،نوموړي وویل چي اربکیانوته ترټولوهغه بداخلاقه کسان چي په غلاوو ،تښتونواوژنوکي لاس لري جذب شوي دي ،ده والي ګل اغاشیرزی دهمداسي کسانو په ګومارنه دقومنوترمنځ په تربګنۍاوبې اتفاقۍ تورن کړ.



دجون پر۲۵مه د میدان وردګ ولایت د نرخ ولسوالۍپه شهاب الدین سیمه کي یرغلګرودچاپې پرمهال دري تنه ولسي وګړي داسیرانوپه توګه له ځان سره وړي دي.

دجون پر۲۹مه یرغلګروځواکونودمیدان وردګ ولایت دنرخ ولسوالۍ له سرکي سیمي څخه دوه تنه ولسي وګړي داسیرانوپه حیث له ځان سره وړي اویوبل تن یې بیاچي په دغه کلي کي میلمه وشهیدکړی دی.

ماخذونه:

[بي بي سي راډیو ،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک =،بینواویېپاڼه ،لراوبر=،روهي =،اونن ټکی اسیا

# ام المومنين حضرت بي بي خديجة الكبرى رضي الله عنها

م نجم الرحمن 'فضلي '

په مکه مکرمه کې يوه کورنۍ په شرافت، ايمانداري او رښتيا ويلو ډېره مشهوره وه، نوموړې کورنۍ له بنو اسد قبيلې سره اړيکه درلوده ، چې هغه د قريشو قبيلوې پښه وه ، د همدغې کورنۍ د سرپرست نوم خويلد بن اسد وو ، د خويلد د کوروداني نوم فاطمه بنت زائده وه، له خويلد او فاطمه څخه خديجة رضي الله عنها زيږيدلې وه، الله تعالى ډېر ښه ورکړې وو ، ځکه يې په ډېر ناز پالنه کيده، سيده خديجة رضي الله عنها د مور پلار تر سيوري لاندې د هغوی د محبت په غيږ کې را لويه شوه، سيده خديجة رضي الله عنها يوه سخي او د لوی زړه ښځه وه، ځکه ورته د طاهره لقب ورکړی شو.

کوم وخت چې سيده خديجة رضي الله عنها پيغله شوه نو پلار يې د واده لو په فکر کې شو ، لومړی يې خپل وراره ورقه بن نوفل ته د هغې د نکاح پيغام ور وليږه، ورقه بن نوفل يو شريف او عالم شخصيت وو ، په تورات او انجيل ډېر ښه پوهيدو ، دا يو ډېر ښه انتخاب وو مګر د نامعلوم علت له امله دا پيغام ونه منل شو ، له دې وروسته خويلد بن اسد د ابو هاله بن نباش تميمي انتخاب وکړ، د هغه اصلي نوم مالک وو ، له لنډو خبرو وروسته د دواړو تر مينځ عقد نکاح وشو ، لږه موده وروسته د سيده خديجة رضي الله عنها او مالک واده وشو ، د دواړو ژوند ډېر په خوشحالي تيريده، الله تعالي جل جلاله سيده بي بي خديجة رضي الله عنها ته دوه لوڼې ورکړې، د يوې نوم يې هند او د بلې يې هاله کيښود ، څه موده وروسته د سيده خديجة رضي الله عنها ميړه (خاوند ) مالک وفات شو ، سيده خديجة رضي الله عنها په ځوانی کې کونډه شوه، کله چې خويلد بن اسد خپله لور په

ځوانی کې کونډه ولیده نو یې وغوښتل تر څو د هغې کور بیا اباد کړي، دا ځل یې په عتیق بن عائد مخزومي باندې نظر ولګید او د هغه انتخاب یې وکړ، د سیده خدیجة ﷺ او عتیق بن عائد مخزومي تر مینځ واده وکړای شو، له دوی دواړو یوه بله انجلۍ پیدا شوه، د کومې نام چې هند کیښودل شو، د دوی دواړو ژوند ښه په خوشحالی مخ پر وړاندې روان وو، خو یوه ورځ یو ناڅاپه د عتیق بن عائد مخزومي طبعیت خراب شو، علاج معالجه هیڅ کار ورنکړ، بالاخر عتیق بن عائد مخزومي هم وفات شو او د سیده خدیجة ﷺ کور یو ځل بیا وران او د غمونو بهیر پرې را مات شو.

د لور په بیا کونډوالي د پلار زړه ډیر ودردید، مګر مخکې له دې چې پلار د خپلې کونډې لور کومه چاره وکړي په دې وخت کې حرب الفجار شروع شو، دا د قریشو او هوازنیانو تر مینځ جګړه وه، خویلد بن اسد هم په دې جګړه کې ګډون درلود او په همدغه جګړه کې یې د اجل غیشي وخوړ او د تل لپاره له دې فاني نړۍ څخه رخصت شو، دا له عام الفیل څخه شل کاله وروستنۍ پیښه وه، دا چې سیده خدیجة الکبری ﷺ ته د میړه (خاوند ) له وفات کیدو وروسته د خپل پلار سرپرستي ور پاتې وه اوس نو دغه سیوری هم د دې له سر څخه لیرې شو، د میړه او پلار له مړینې وروسته سیده خدیجة ﷺ له سختو مشکلاتو سره مخ شوه، د هغې ﷺ د امدن ذریعه تجارت وو او د دغه کار پر مخ بیول ورته خورا ګران کار وو، مګر همت یې وکړ او خپل کار وبار یې په خپله تصرف کې واخیست، زیاتره وخت به هغې ﷺ خپل مال یو چا ته ورکړ او له قافلې سره به یې ولیږه.

په مکه مکرمه کې د قریشو په یوه عزتمنده کورنۍ کې د عبد الله بن عبد المطلب یو هلک پیدا شو، له پیدا ینبت د مخه یې پلار عبد الله وفات شو، دغه هلک یو اځې د خپلې مور په سرپرستي کې وو، د هغه نام محمد ﷺ او احمد ﷺ کیښودل شو، دا وخت دی د شپږو کلونو و، چې مور یې بي بي آمنه ناروغه شوه او له دې نړۍ یې کډې بار کړې، اوس نو نوموړی هلک د خپل نیکه په سرپرستي کې شو، د عبد المطلب عمر یو سل اته کاله وو، کله چې محمد ﷺ اته کلن شو نیکه یې هم وفات شو، له دې وروسته د هغه ﷺ تره ابو طالب د ده ﷺ سرپرست جوړ شو، ابو طلب په خپله عیالدار وو او ډیر تنګ لاسی وو، خپل یتیم وراره ته د تعلیم ورکولو پر ځای یې غوښتل تر څو زر تر زره په کوم ګټور کار اخته کړی شي، له همدې امله کوم وخت چې ده ته دا خبر ورسید چې سیده خدیجة ﷺ غواړي تر څو د خپل تجارت له سامان سره یو اعتباري کس ولیږي نو یې هغې  ته د خپل وراره د لیږلو سفارش وکړ.

حضرت سیده خدیجة ﵂ نهایت ډیره عقلمنده او هوښیاره بي بي وه، هغې ﵂ د مکې مکرمې ټول خلک پیژندل، د حضرت محمد ﷺ بن عبد الله په هکله یې د خلکو نظرونه اوریدلي وو چې امین او صادق دی، حضرت سیده خدیجة ﵂ د خپل کاروبار لپاره حضرت محمد ﷺ غوره کړ، اتفاقي یوه قافله د شام لوري ته تلونکې وه، سیده خدیجة ﵂ خپل مال ورکړ او حضرت محمد ﷺ یې له قافلې سره ملګری کړ او خپل یو غلام یې هم ورسره ولیږه، د کوم نام چې میسره وو، حضرت محمد ﷺ له باطني صفتونو سره سره ظاهري حسن او جمال هم درلود.

حضرت محمد ﷺ له قافلې سره روان شو او دومره محنت یې وکړ، چې دوه چنده ګټه یې وکړه، میسره ورسره ملګری وو او په ډیر ژور نظر یې څاره، د هغه ﷺ له اخلاقو ډیر متاثره شو او په زړه کې یې د محمد ﷺ د محبت او عزت جذبه پیدا شوه، له همدې امله کله چې قافله واپس بیرته مکه مکرمه ته راغله او میسره له خپلې باداري سره مخامخ شو، نو یې د سفر ټول داستان ورته بیان کړ، د حضرت محمد ﷺ نیک چلند یې هم ښه ورته بیان کړ، میسره د سفر پر مهال ډیر څه ولیدل، کله چې دوی په بصره کې د یوې ونې لاندې ارام کاوه نو دلته یو راهب راغی، د کوم نام چې (نطور )وو، کوم وخت چې نطور له حضرت محمد ﷺ سره مخامخ شو نو یوه پیشنګوئي یې وکړه ،هغه دا چې دی تر ټولو اخیرنی پیغمبر دی، له دې پرته (میسره )د سفر پر مهال دا هم لیدلي وو چې یوې وریځې د هغه ﷺ پر سر مبارک سیوری کړي وو ،چې دی ﷺ یې له ګرمې څخه بچ ساتلو، سیده بي بي خدیجة الکبری ﵂ چې دا صفتونه واوریدل او هم یې دوه چنده زیاته ګټه ولیدله نو په زړه او ځان د هغه ﷺ تابع شوله.

حضرت سیده خدیجة ﵂ دوه میړونه کړي وو، چې وروسته له دواړو کونډه شوې وه، زړه یې مات شوی وو او کلک عهد یې کړی وو چې په راتلونکي کې به له هیچا سره واده نکوي، له همدې امله کله هم چې هغې ته د ډیرو ښو او مالدارو کورنیو لخوا د رشته لپاره کوم پیغام راغلی ،دې یې هیڅ پروا نده کړې او نه یې کوله، په همدې ډول وخت تیریدو تر دې چې سیده خدیجة ﵂ د څلویښتو کلونو شوه، په دې وخت کې کله چې سیده خدیجة ﵂ د محمد ﷺ حالات واوریدل نو د هغه ﷺ له کردار څخه دومره متاثره شوه چې په زړه کې یې له هغه ﷺ سره د واده کولو سوچ پیدا شو، په دغه سلسله کې سیده خدیجة ﵂ خپله نژدې او خوا خوږې ملګرې( نفیسه بنت منیه ) راوبلله او د خپل زړه ټول راز یې ورته وویل،چې وروسته یې حضرت محمد ﷺ ته ور ولیږله تر څو هغه ﷺ ته د سیده خدیجة ﵂ له لوري د نکاح پیغام ورسوي، نفیسه دا ذمه واري پر غاړه واخیسته او حضرت محمد ﷺ ته ورغله، له خبرو کولو وروسته

حضرت محمد ﷺ هو کړه ورسره وکړه او نفیسه بیرته د سیده خدیجة رضي الله عنها لوري ته په دا سې حال کې چې د حضرت محمد ﷺ رضائیت هم ورسره وو راغله، په همدې ډول د دواړو تر مینځ خبر و شوه.

د نکاح په وخت کې د حضرت محمد ﷺ او سیده خدیجة رضي الله عنها رشته داران سره یو ځای شول، د حضرت محمد ﷺ تره ابو طالب او د سیده خدیجة رضي الله عنها د تره زوی ورقه بن نوفل د نکاح خطبه وویله، حق مهر پنځه سوه درهم وټاکل شول کوم چې اداء کړی شو، د نکاح کولو په وخت کې د سیده حضرت خدیجة الکبری رضي الله عنها عمر څلویښت کاله وو او د حضرت محمد ﷺ عمر پنځه ویشت کاله وو، له واده وروسته حضرت محمد ﷺ په مستقل ډول د حضرت سیده خدیجة الکبری رضي الله عنها کور ته نقل شو او هلته یې استوګنه غوره کړه، دا وخت یې مالي حالت هم ښه شو.

د حضرت سیده خدیجة الکبری رضي الله عنها ژوند ډیر په ارام تیریده، هر وخت به د خپل میړه د خوشحالولو لپاره د هغه ﷺ په خدمت کې اخته وه، د هغه ﷺ پوره اطاعت یې کولو او په هر کار کې یې سلاح مشوره ورکوله، حضرت سیده خدیجة الکبری رضي الله عنها د خپل میړه ډیر خیال ساتلو او تل یې د هغه ﷺ حوصله افزائي کوله.

سیده حضرت خدیجة الکبری رضي الله عنها ډیر اولادونه درلودل، له ابو هاله کوم یې چې لومړنی میړه وو دوه لونې پیدا شوې وې، چې د یوې نام هند او د بلې هاله وو، له دویم میړه عتیق څخه یې یوه لور پیدا شوې وه، د کومې نام چې هند وه او له حضرت محمد ﷺ څخه یې دوه زامن او څلور لونې پیدا شوي وي، یو زوی یې له بعثت د مخه وو د کوم نوم چې قاسم وو او بل له بعثت وروسته وو، د کوم نوم چې عبد الله وو او هم یې له حضرت محمد ﷺ څخه څلور لونې پیدا شوې وې (۱) حضرت زینب رضي الله عنها (۲) حضرت رقیه رضي الله عنها (۳) حضرت ام کلثوم رضي الله عنها (۴) حضرت فاطمة الزهری رضي الله عنها.

په ازواج مطهرات کې حضرت سیده خدیجة الکبری رضي الله عنها یو شمیر ځانګړې خصوصیات لري، د بیلګې په توګه هغه د حضرت محمد ﷺ لومړنی بي بي وه، کوم وخت یې چې نکاح ورسره کوله هغه د څلویښتو کلونو وه، خو بیا هم د هغې په ژوند کې حضرت محمد ﷺ بل واده ونکړ او بل دا چې له حضرت ابراهیم رضي الله عنه پرته د حضرت محمد ﷺ ټول اولادونه له هغې څخه وو.

پنځلس کاله وروسته کله چې حضرت محمد ﷺ پیغمبر شو او د نبوت د فرایضو اداء کول یې غوښتل، نو تر ټولو لومړی یې حضرت سیده خدیجة رضي الله عنها ته دا پیغام واوراوه، هغه رضي الله عنها د پیغام له

اوریدو د مخه مؤمنه وه، ځکه چې له هغې زیات بل هیڅ کس د حضرت محمد ﷺ د صدق فیصله نه وه کړې، د صحیح بخاري په باب بدء الوحی کې دا واقعه په تفصیل سره ذکر ده.

تر هغه وخت پورې چې پنځه ګوني لمونځ نه وو فرض کړی شوی ، حضرت محمد ﷺ نفلي لمونځونه اداء کول، سیده بي بي خدیجة الکبری ﷺ هم له هغه ﷺ سره په نفلو کې ګډون درلود ، حضرت ابن سعد فرمايي (مکث رسول الله ﷺ و خدیجة ﷺ یصلیان سرا ) حضرت محمد ﷺ او خدیجة ﷺ تر یوه وخته پورې په پټ ډول لمونځ کاوه.

کوم وخت به چې حضرت محمد ﷺ ته د مشرکین مکه لخوا کومه صدمه او تکلیف ورسید ،نو د حضرت سیده خدیجة ﷺ خوا ته په راتلو سره به هغه لیرې کړی شول، ځکه چې سیده حضرت خدیجة ﷺ د حضرت محمد ﷺ د خبرو تصدیق کونکې وه او د مشرکینو معامله به یې د حضرت محمد ﷺ په وړاندې ډیره نا چیزه او سپکه وړاندې کوله.

دری کاله وروسته کله چې د الله تعالی ﷻ له لوري حکم وکړای شو ، چې خپلو نژدې خپلو خپلوانو ته د اسلام بلنه ورکړه ! نو حضرت سیده خدیجة ﷺ په خپل کور کې یوه میلمستیا جوړه کړه، د خوراک څښاک انتظام د حضرت علي کرم الله وجهه پر غاړه و ، دغې میلمستیا ته د بنی هاشم پنځه څلویښت کسان را بلل شوي وو ، دوی ټول د سیده خدیجة ﷺ په کور کې سره را ټول شول، کوم وخت چې د خوراک څښاک معامله پای ته ورسیده، نو حضرت محمد ﷺ هغوی ته د خپل رسالت او د الله تعالی ﷻ د دین خبره وکړه او ورته وې ویل: په تاسو کې څوک زما ملګرتیا کولو ته تیار دي؟ بنی هاشمو د داسې بیان او خبرو توقع نه درلوده، هغوی ټول چوپ پاتې شول، حضرت علي ﷺ په دې وخت کې ډیر کشر وو ، مګر را پورته شو او په ډیر جرئت یې دا اعلان وکړ، چې زه دې یې ملګری دی، پاتې نور د ټول خاندان خلک ډیر سخت ناراضه شول، هغوی بد رد وویل او په تلو تلو کې یې د خپلې دغې بې عزتۍ د غچ اخیستو اخطارونه ورکول، مګر په دې موقع حضرت سیده بي بي خدیجة ﷺ موجوده وه او د پخوا په څیر یې دا ځل هم خپل میړه حضرت محمد ﷺ ته ډاډ ورکولو او د هغه ﷺ حوصله افزائي یې کوله او له هغه ﷺ سره یې هر ډول مرسته کوله.

خپلو خپلوانو ته د میلمستیا او هغوی ته د اسلام د دعوت له ورکولو څه موده وروسته الله تعالی ﷻ حضرت محمد ﷺ ته د ښکاره او عام تبلیغ کولو حکم وکړ، حضرت محمد ﷺ ټول خلک را وبلل او د صفا غره پر سر ودرید او هغوی ته یې د سپیڅلي مذهب اسلام په

باره کې خبرې وکړې او له همدې سره سره يې دا اعلان هم وکړ چې دی ﷺ د الله تعالی له لوري پيغمبر غوره شوی دی، د دغه اعلان له کولو وروسته حضرت محمد ﷺ ته د اذيتونو او مصيبتونو دروازې خلاصې شوې او له ډول ډول ستونزو او کړاوونو سره مخ شو، د مکې مشرکينو ډول ډول پلانونه هغه ﷺ ته د نقصان رسولو لپاره جوړ کړل، د هغوی له اسلام سره دښمني دومره زياته شوه کله به هم چې حضرت محمد ﷺ د باندې راووت نو د مکه مشرکينو به په ډبرو ويشتلو، مرداري او نجاستونه به يې ور شيندل، څو ځله پر ډبرو د ويشتو له امله د حضرت محمد ﷺ پر مبارک سر او څيره باندې وينې روانې شوې، مګر هغه ﷺ کله هم د صبر لمن نه پرېښودله، حضرت سيده خديجة ﵂ به په خپلو لاسونو د حضرت محمد ﷺ زخمونه پاکول، پټي او ملهم به يې پرې لګول، له خدمت او همدردي سره سره يې د هغه ﷺ حوصله افزائي هم کوله.

د حضرت سيده خديجة ﵂ په مناقبو کتابونو دومره څه ليکلي چې جلا جلا کتابونو ته اړتيا لري او نشي کيدلای چې په دومره لنډ ځای کې راټول کړی شي، په صحيحينو کې راځي (په ټول جهان کې افضل ترين د ښځو مريم عليها السلام او خديجة ﵂ دي) په ابن هشام کې راغلي (وکانت له وزير صدق على الاسلام) هغه ﵂ د اسلام متعلق د حضرت محمد ﷺ رښتونې مشاوره وه.

يو ځل حضرت جبرئيل عليه السلام له حضرت محمد ﷺ سره ناست وو بي بي خديجة ﵂ راغله نو وې فرمايل (بشرها ببيت في الجنة من قصب لا صخب فيه ولا نصب) هغې ته په جنت کې د يوه داسې کور زيری ورکړه کوم چې د ملغلرو دی او په کوم کې چې نه شور شته، نه محنت او نه مشقت.

حضرت سيده خديجة ﵂ د پيغمبرې په لسم کال په رمضان المبارک کې په مکه مکرمه کې وفات شوه، په دې وخت کې يې عمر **۶۵** کلونه وو، له حضرت محمد ﷺ سره يې کم زيات **۲۵** کلونه ژوند تير کړ، پنځلس کاله له پيغمبرې د مخه او لس کاله له پيغمبرې وروسته، کوم وخت چې وفات شوه په دې وخت کې د جنازه لمانځه حکم نه وو نازل شوی، د کفن له ورکولو وروسته په جنت المعلی کې خاورو ته وسپارل شوه.

رضي الله عنها

ليكوال داسلامي نړۍ مفكر عالم مولانا سيد ابوالحسن علي ندوي (رح)
ژباړه : ش ' منصور '

# المرتضى كرم الله وجهه

## دامير المؤمنين علی ابن ابي طالب رضي الله عنه ژوند ليک

### کورنۍ !اوپه راتلونکي نسل يې اغېزي :

**بنوهاشم :**

په قريشو کې دبنوهاشم کورنۍ حيثيت سرسبد ګل ته ورته و ،اګرکه دتاريخ په کتابونو کې يې په اړه نيمګړي مواد موندل کېږي ،هو! کوم څه چې موندل کېږي دهغو په مخکې ايښودو سره مونږ ته دانتيجه په لاس راځي شو چې دقريشو دغه ښاخ (بنوهاشم) ته دخپل انساني شعور اوميانه روۍ په وجه امتياز په برخه وه ، ددينې اودماغي پلوه يې هم په نورو فوقيت لاره ،بيت الله (خانه کعبه ) چې دالله (جل جلاله) په نزد کومه مرتبه اومقام لري ، په هغه يې ښه پوخ ايمان درلود ، زياتۍ اوظلم يې ګناه ګڼله ، ضد اوکينه يې شعار نه و ه ،ښه لوړهمت يې لاره ، له کمزورو او بې وزلا نو سره يې د شفقت اومهربانيو څخه ډک چلند کاو ،سخاوت اوشجاعت يې مزاج و، لنډه داچې اخلاق ، شرافت ، ،حميت ، همت اوهغو نورخصوصيات کوموته چې په عربې کې دفروسيت (chivalry) جامع لفظ کارول کېږي ، په پوره ډول يې په بنې هاشمو کې شتون لاره ، دهغوئ اخلاق اوسيرت درسول الله (صلی الله علیه وسلم) دپلرونو اونيکونو ځانګړتيا وه ، اواسلام چې دکومو عالي اخلاقو بلنه ورکړيده ، ورسره ددوئ اخلاقو مناسبت لاره ، البته تريوه وخته هغوئ هم دخپل وطن دنوروقبايلو په جاهلانه عقايدو کې اودغير الله په عبادت کې له هغوئ سره شريک وو ( السيرة النبويه دمصنف ۷۵مخ چاپ ۷ ، دارلشروق جده )

**درسول الله (صلی الله علیه وسلم) اوحضرت علی (رضي الله عنه)بزرګوار نيکه عبد المطلب بن هاشم :**

عبد المطلب بن هاشم دخپل تره "مطلب "وروسته دحاجيانو لپاره داوبو رسولو او دهغوئ دميلمه پالنې (

السقايه والرفاده ) دنده درلوده ، نوموړي پخپل وخت کې دخپلوپلرونو اونیکونو پشان دخلکو دغه خدمتونه په ښه پراخه تو ګه سرته رسول ، چې له امله یې دخلکو ترمنځ ښه باور درلود اوخلکو ورته دعزت او احترام په هغه ستر ګه کتل چې په کومه دهغه وړاندینو مشرانوته هم نه کتل

عبد المطلب دخپل نیکه "قصي "پشان شتمن اودقریشویواځینی مخدوم اومطاع نه و ، دغه وخت په مکه کې له هغه نه زیات شتمن ،ددونیاوي وجاهت اوحیثیت څښتنان نور هم وو ، البته هغه هم دمکي په سردارانو کې شمار وه ، ولې چې" سقایه اورفاده" لوړه څوکۍ وه ،هغه له ده سره وه ، هم یې خپل اړوند مسؤلیتونه په خورا ښه بیدارۍ اوجذبه سرته رسول ، دخپل منصب له لحاظه نوموړی دزمزم کوهې متولي هم و ه او دزمزم اوبه چې دبیت الله سره کوم تعلق لري دهغه په وجه دنوموړي احترام به نورهم زیات کیده .

عبدالمطلب ته په دې چې" بیت الله دخدای ( ﷻ ) کور دی" ښه پوخ یقین وه اوپه دې یې ښه کلک باور چې هم هغه یې ساتونکی دی ، چې ددې یوه بېلګه دهغو خبرو څخه هم ترلاسه کېږي کومې چې نوموړي دحبشي له پاچا "ابرهه" سره کړي اوترې ددې قریشي سردار لوړ همت اوجلالي شخصیت په ښه تو ګه جوتیږي :

کله چې "ابرهه" په مکه یرغل وکړ ، اودبیت الله دسپکاوي او دهغه دعظمت دپایمالولو اراده یې وکړه ، په ترڅ کې یې هغه (ابرهه) دعبدالمطلب دوه سوه اوښان هم له ځان سره بوتلل ، عبد المطلب دخپلو اوښانو دخلاصون په موخه دابرهه دربار ته دورتګ اجازت وغوښته ، ابرهه هغه ته ددرناوي پخاطر له خپل تخت څخه ښکته شو او په فرش کیناست دعبدالمطلب څخه وپوښتل دکومې اړتیا له امله دې دلته دراتلو زحمت وکړ ؟ عبد المطلب وویل : دلته ځما دراتلو اړتیا دا وه چې ستا کسانو ځما دوسوه اوښان غله کړي اوهغه راته بیرته راکړه !

دعبد المطلب له خولې ددې خبرې په اوریدو ابرهه هغه ته دحقارت په نظر وکتل او وې ویل :ته ! ددوسوه اوښانو په اړه خبرو ته راغلی یې اوهغه کور له یادوباسې کوم پورې چې ستا اوستا دپلرونو اونیکونو دین تړاو لري دکوم دړنګولو په اراده چې زه راغلی یم عبد المطلب وویل :

انا رب الابل وان للبیت ربا سیمنعه

زه داوښانو څښتن یم او د "البیت " یوڅښتن شته دی هغه به یې دفاع وکړي

ابرهه وویل : هغه ما له خپلې ارادې نشي ګرځولی عبد المطلب ځواب ورکړ : انت وذاک ! ته یوه شه اوخپل دې کار !

عبد المطلب صاحب به خپل اولاد ته دظلم اوزیاتي کولو څخه دځانونو لرې ساتلو داخلاقو اوشرافت داصولو خپلولو نصیحت کا و ، داتیا کلو په عمر عبد المطلب وفات شو ، هغه مهال رسو الله ( ﷺ ) داتوکلو په عمر وه ، ددې مطلب داچې چې نوموړی نیږدې په ۵۷۸زکال کې وفات شوی دی ، تاریخ پوهانو لیکلي چې په وفات یې ترډېرو

ورزو دمكي باذار تړلی وه

## دسيدنا علی (رضي الله عنه) پلار ابوطالب :

دابوطالب بن عبدا لمطلب بن هاشم بن عبد مناف زوكړه درسول الله (ﷺ) دبختوري زوكړي څخه ۳۵ كاله وړاندې شوي وه ، مشهور روايت دادی چې دهغه (ابوطالب ) نوم عبد مناف و، خو پخپل كنيت باندې مشهور وه ، په يو ه بل روايت كې دادي چې دهغه نوم عمران وه ، ځينې وايي : شيبه نوميده ، نوموړی دقريشو په هغو ممتازو خلكو كې شماروه كومو چې به دخلكو په شخړو اوجنګونو كې دپريكړو كولو وړتيا لرله ، له دې وجې خلكو ورته تل پخپلو مسايلو كې رجوع كوله( بلوغ الارب فی معرفة احوال العرب ۱ټوک ۳۲۴مخ طبقات الكبری لابن سعد )

عبد المطلب دخپلي مړينې څخه وړاندې ابوطالب ته وصيت كړی و چې په رسول الله (ﷺ) به پام كوي ، كله چې عبد المطلب وفات شو ابوطالب دوصيت سره سم درسول الله (ﷺ) پالنه پخپله ذمه واخيسته اوپه ښه پاملرنه اوتوجه يې درسول الله (ﷺ) پالنه وكړه ، يووار يې په كوچنيوالي كې ابوطالب رسول الله (ﷺ) ځان سره شام ته هم بوته ، درسول الله (ﷺ) پلار او ابوطالب دواړه حقيقي ورونه وو ، يعنې ديوي مور اويوه پلار اولادوو ، موريې "فاطمه بنت عمرو بن عائذ بن عمران بن مخزوم وه" (ابن هشام سيرت ۱ټوک ۱۷۹مخ)

ابوطالب كوم شتمن سړی نه و ه ، خو خپل وراره ورته دخپل ځوی نه هم زيات ګران وه ، له ځان سره يې اوساوه ، هرچېرې به چې ته ،ځان سره يې بيوه ، ددې څخه وړاندې يې له بل هيڅچا دومره درناوی نه و كړی كوم چې هغه دخپل وراره كاو ه ، په خوړو كې به يې په خصوصيت سره ورته پام لرنه كوله

ابن اسحاق وايي :يواځې ابوطالب و چې دعبدالمطلب دوفات وروسته يې درسول الله (ﷺ) دپالنې كفالت وكړ اوتل يې دهغه ملاتړ اوملګرتيا كوله

څنګه چې وړاندې تېر شول چې ابوطالب شام ته په يوه تجارتي سفر دروانيدو په حال كې وه ،چې له امله يې رسول الله (ﷺ) دهغه دجدايې په احساس غمګين شو ابوطالب چې وليدل نوزړه يې دشفقت له جذبې راټ‌ک شو وي ويل :په خدای سوګند زه داماشوم نشم پرېښودلی اونه دی ځما بيلتون زغملی شي ، ضروريې له ځان سره يوځای په سفر بوزم (ابن هشام سيرت ۱ټوک ۱۷۹مخ)

رسول الله (ﷺ) دخپل تره (ابوطالب) دميرمنې فاطمه بنت اسد په اړه فرمايل :ځماد دمور دانتقال وروسته چې زه دچا له خيټې پيدا شوی يم ، هغه هم دا ځما مور ده ، ابو طالب به چې كله ميلمستيا وكړه دكور دنورو ټولوغړو سره به يې زه هم پكې شريكولم ، خوبيا به هم هغې ( دابوطالب ميرمنې) دخوړو څخه يوڅه شی جلا اېښودل چې هغه به بيا ما كوم بل وخت خوړل

دنوموړې ( حضرت فاطمه بنت اسد رضي الله عنها ) په اړه ابوعمرو وېناده :چې هغه دهاشمي کورنۍ هغه لومړۍ مېرمن ده چې دخيټې نه يې يو هاشمي پيداشوی دی ( الاستيعاب فی معرفة الاصحاب لابن عبد البر ۲ټوک ۲۶مخ )

کله چې رسول الله ( صلی الله علیه وسلم )داسلامي دعوت لپاره پورته شو اوپه ښکاره يې دحق اعلان وکړ ، بوتان اوبوت پالنه يې وغندله ، نوخلکو يې مخالفت شروع کړ ، تردې چې ټول درسول الله ( صلی الله علیه وسلم ) په دښمنۍ کې سره يو شول خوابوطالب په يوائې سر درسول الله ( صلی الله علیه وسلم ) دفاع اوملاتړ ته دوام ورکړ .



هر کله چې دغه معامله ( اسلامي دعوت ، اودکفارو عداوت ) نهايې زيات شو ،دقريشو مخورمشران ابوطالب ته راغلل اوورته وې ويل :جنابه !ته زمونږ مشر اوسرداريې ، مونږ ستا ډېر قدر اواحترام کوو مونږ له تاغواړو چې خپل وراره ( داسلامي دعوت څخه ) وګرځوه خوتا داونکړل اوس زمونږ دصبر کاسه نوره ډکه شوې ده مونږ خپلو پلرونو اونيکونو ته په بدردويل ، دخپلې پوهې اوعقل په سپکاوي ، دخپلوخدايانو په تحقير چې څومره صبر کولی شو هغه مو وکړ ، له دې وجې اوس تاته راغلي يو چې يا هغه ( محمد صلی الله علیه وسلم )پخپله ددې کاره منع کړه او يا مونږ ټول له تاسره جنګ ته تياريو څو له مونږ نه يولوری ووژل شي ، ابوطالب رسول الله ( صلی الله علیه وسلم ) ته دهغوئ خبرې واورولې اوترې وې غوښتل چې په دوئ اوپخپل ځان رحم وکړه درسول الله ( صلی الله علیه وسلم ) ځواب داو :محترمه کاکاجانه !

١ که چېرې داخلک راته په ښي لاس کې لمر اوپه کيڼ لاس کې سپوږمۍ هم کېږدي او بيا راته ووايي : چې دا کار( اسلامي دعوت ) مکوه ! زه به يې ونه منم ، ترهغه وخته به يې جاري وساتم چې يا الله ( جل جلاله ) ماته غلبه راکړي اويا زه په دې لار کې قربان شم ابوطالب وويل :ځماګرانه وراره ! ته خپل کار روان وساته څه چې وايې هغه وايه !په خدای ( جل جلاله ) سو ګند زه به تا هغوئ ته ونه سپارم (ابن هشام سيرت ١ټوک ۲۶۵-۲۶۶)

کله چې اسلام دعربو په قبايلو کې په خپريدو شو نوقريشو پخپل منځ کې سلا وکړه او دايې طې کړه چې يو داسې ليک وليکئ چې دبنوهاشم اوبنو مطلب په اړه پکې ليکلي وي چې ددې کورنۍ سره دې دغم اوښادۍ اړيکې وشلول شي ، ورباندې هيڅ شی به نه پلورل کېږي ، اونه به ترې کوم څېز پيرل کېږي ، دغه پريکړه ليک

یالوظنامه په یوه کاغذ دلیکلو وروسته دکعبې دننه زوړند کړای شوه ، ټولو اومنله ، دبنوهاشم اوبنو مطلب کورنیو وګړي دابوطالب سره ملګري شول اودهغه سره هغوئ هم په شعب کې داخل شول ( ابن هشام سیرت ۱ټوک ۳۵۰.۳۵۱مخ )

داپېښه دنبوت داووم کال دمحرم میاشتي ده تردرې کاله بنوهاشم په دې شعب کې محبوس وو ، په پټه به ورته خلکو یوڅه رسول په ښکاره مقاطعه وه په هرصورت هرڅه چې پېښېدل هغه پېښ شول بالاخر وینا هغه عهدپاڼه وخوړه په دې سره وربانديې عمل هم منسوخ شو (دتفصیل لپاره ابن هشام سیرت اودمصنف کتاب السیرت النبویه ۱۳۸.۱۳۹مخ)

دنبوت په لسم کال دشوال په منځ کې ابوطالب وفات شو ، دغه مهال هغه اتیا کلن وه ، په همدې کال درسول الله (ﷺ) میرمن حضرت خدیجه الکبری (رضي الله عنها) هم وفات وشوه ، ابوطالب اسلام قبول نکړ ، په دې کال رسول الله (ﷺ) ته پرلپسې مصایب پېښ شول له دې وجې یې دغه کال په عام الحزن سره یاد کړ

## دعلی بن ابي طالب (رضي الله عنه) ورونه:

دابوطالب څلور ځامن وو، طالب (دچاپه نامه چې نوموړي کنیت ایښی و) دویم عقیل ، دریم جعفر څلورم علی اودوه یې لوڼه وې ام هاني اوجمانه ، داټول دفاطمه بنت اسد رضي الله عنها دخیټې څخه وو ، اوپه دې ټولو ورونو اوخویندو کې دلسو ، لسو کالو وقفه وه له دې وجې علی (رضي الله عنه) دجعفر (رضي الله عنه) څخه لس کاله کشر وه

طالب دبدر غزوي وروسته دشرک په حالت کې ومړ ، په یو روایت کې راغلي چې دمکي نه بیرون چېري په سفر لاړ وه بیرته رانغی اوهیڅ خبریې ونه موندل شو ، هغه له هغو خلکو نه وچې په یوه سفر کې ترې لار ورکه شوي وه ، له رسول الله (ﷺ) سره یې په زړه کې محبت کاو اوپه شان کې یې نعتیه اشعار هم ویلي وو ، بدرجنګ ته په نه زړه لاړ وه ، کله چې قریش درسول الله (ﷺ) مقابلي ته ووتل هغوئ ورته په طعنه کې وویل :اې هاشمیانو! مونږ ته ښه جوته ده چې له مونږ سره مجبوراً راغلي یئ کنه په زړه کې ستاسي همدردي دمحمد (ﷺ) سره ده په جنګ بدر کې له کفارو سره یوځای دمسلمانانو سره نه جنګیده ، بیرته مکي ته چې ستون شو درسول الله (ﷺ) په باره کې یې داشعارو یوه قصیده وویله (الجوهرة في نسب النبي ﷺ واصحابه العشرة تالیف محمد بن بکر بن عبد الله ابن موسی الانصاري التلمساني المعروف بالبری مړ۶۸۱ه چاپ دار الرفاعی الریاض لومړی چاپ)نوربیا

په خپل لاس بل کړي اورکې سوځيږي




# په خپل لاس بل کړي اورکې سوځيږي

په خپل لاس بل کړي اورکې سوځيږي

حسن زوی..............................

په دنیاوي ژوند کې پخپله پروسایلو دخیر یا دشر حکم نشي لګېدای ، پـه وسایلو کې دخیـر او شر دواړه اړخونه شته بس تړاو یې دکارولو سره دی که دخير دپاره کارول کېږي نو پکې خیـر دی او کـه دشـر لپـاره تـرې کار اخستل کېږي نو بیا شر دی.

دنړیوالو رسنیو همدا حال دی ، ترې دانسانانو دښې ښوونی سالمې روزنې او انسانانو ته پـه ټولو چـارو کې دسمې لارې دتعین ګټور کار هم اخستل کیدای شو او ترې دانسانانو دبې لارې کولو کار هم ، چې متأسفانه اوس مهال نړیوالې رسنۍ زیاتره دشر لپاره کارول کېږي ؛ دنړیوالو رسنیو نه اوس یوه وسله جوړه شویده داسی وسله چې دلاس په لاس جنګېدواوډګر ته لاله راوتووړاندې پرې یو اړخ ته دماتی ور کولو کوششونه کېږي پـه ډېرې اسانۍ ترې دسونو زرو انسانانو دراپور تـه کولو او بیـا دوینو دسیلابونو روانولو کـار اخسـتل کېږي ؛ رسنۍ چې دهمدې شوم هدف لپاره دوسیلې په توګه استعمالېږي ور ته دمیډیا وار اصطلاح کارول کېږي.

تر ټولو وړانـدې دامریکـا درسنیوو پراخو اغېـزو تـه پـام شـو او دخپلـو اهـدافو دلاسـته راوړولـو لپـاره یـې پراغیزمنې وسیلې تبدیل کړې: داسې وسیلې چې پرې دمیلیونونو انسانانو فکرونه داسی بدلولای شي چې دظلم پر ضد نه یواځې داچې اوازونه پور ته نکړي بلکې برعکس مظلومینو ته دظالمانو په نظر وګوري.

بی له شکه چې داسې رسنیو دبمونو او توغنـدو نـه زیـات هلاکـت خپـور کړی ؛ پـه عـراق کې دعامـه وژنـې دوسلو دشتون دروغ وو او که ټولې نړۍ ته دستر خطر په صفت دطالبانو دمعرفي کولو تبلیغاتي کمپاین و ټول دهمـدې نړیوالو رسـنیو پرمټ وشول ؛ شپـه او ورځ بـه یې دروغ ویـل خـو داسې روغ بـه یې ویـل چې ډیـر ژر یـې دخلکوپه فکرونواغېزې وکړې او پرې خپلو شومو اهدافو ته ورسیدل.

پر ټولنې داغیزو په لحاظ په رسنیو کې تر ټولو لومبی مقام دفلم دی ؛ پر لیدونکو دفلم اغېزې ډېری تېزې او جورې وي ځکه خو دخپلو سیاسي اهدافو دلاسته راوړلو پـه موخـه دولتونـه دفلـم نـه ډېـر زیـات کـار اخلي ، پـه

ځانګړې توګه امريکاخو ډېرې هڅې کوې چې دهالي ووډ(دامريکافلمي صنعت)پر مټ خپل کلتور او فکر نړۍ ته خپور کړي او له دې لارې خپل ډېر اهداف ترلاسه کړي ؛ دروسانو پر ضد دافغانستان جهاد په حق کې هالي ووډ څکه فلمونه جوړول چې دافغانستان دجهاد کاميابۍ سره ددوئ دروسانو دماتې خوړلو هدف تړلی و.

هټلر چې په ټولې نړۍ او ځانګړې توګه لويديځ کې ور ته دتر ټولو نه دستر ظالم انسان په نظر کتل کېږي تر شاېې دفلم ونډه ډېره زياته ده ؛ ځان ته دټول لويديځ دخواخوږۍ راجلبولو په موخه يهودو دهولو کاسټ(دهټلر په لاس دشپږنيم ميليونو يهودانو دعامه وژنه)د دروغو نه ډکه خبره په نړۍ کې خپره کړه او بيا يې دخلکو زړونو ته ددې خبرې دبنه کوزولو لپاره ډېر معياري فلمونه جوړ کړل ؛ په ټول لويديځ کې به چې په هولو کاسټ باندې دجوړ و شويو فلمونو دليدلو نه پس ليدونکي دسينماګانو نه راوتل نو له ستر ګو به يې اوښکې روانې وې او ديهودو دمظلوميت دروغجن داستان به يې په زړونو کې په حقيقت بدل شوی و.

همدارازپه تيرو ۴لسيزو کې فلم دانتقام اخستلو،دزور له لارې دهر څه کيدلو فکر ، قاچاق،دمافيا دزور ښکاره کولو،دفحاشۍ او عريانيت،بدو ردو ويلو،دناوړه جملو او مکالمو داشاعت او عام کولو لپاره ډېر کاروکړ ،دکابو ټولې نړۍ ۳ نسلونه ترې ډير اغېزمن شول او دډېروخلکو اخلاق يې تباه کړل ؛ دجرمونو په اړه جوړ شوي فلمونه دجرمونو دزدکړې تر ټولو ښه ذرائع وګرځېدل او ځوانانو ترې دعزتونو لوټولو،قتل،اختطاف،غلاګانو،دلارو شوکولو او په رڼا ورځ دکورونو لوټولو نوې نوې طريقې يادې او عملي کړې.

همدارنګه دمحبت (چې يو هر اړخيز فطري احساس دی)په نوم جوړوشوو فلمونو په ځوانانو هلکانو او انجونو کې دافراطي ازادۍ،عياشۍ،عزت پلورلو او عزت لوټولو کلتورپه ډېرې تېزۍ خپور کړ چې له امله يې اوس يواځې په امريکا کې په اوسط ډول په هرې يوې دقيقې کې ۳ميرمنې خپل عزت پلوري او دزنابالجبر شميره خو بيا ډېره زياته ده ؛ دفلم او سينما له لارې په نړۍ کې په ډېر سرعت دشر خپريدلو وجه داده چې فلم ځوانان دهيرو ينو نه هم زيات اغيزمن کوي ؛تشدد ،لوټمار ،ځان وژنه،عزت پلور عزت لوټول او نورې بدې چارې ديو فلم ليدلو نه پس دخام فکر لرونکو ځوانانو لپاره دومره په زړه پورې چارې وګرځي چې بيا په خپل حقيقي ژوند کې هر ځوان ددې ټولوبدوچارو دعملي کولو هڅې کوي چې په امريکا او نور لويديځ کې له دې امله دتيرو ۲ کلونو راهيسې ډير ستر شکايتونه رامخې ته شويدي.

هو يواځې په امريکا کې په تيرو څو کلونو کې دبدامنۍ کابو ۱۳داسې پيښې رامنځته شوي چې په هرې پيښې کې دفلم ديوې صحنې نه اغيزمن شوی ځوان بلاموجبه په لسګونو تنان وژلي دي .

دزيات پند اخستلوخبره داده چې زياتره دا پيښې په تعليمي ادارو کې رامنځته شويدي او په هرې پيښې کې قاتل ځوان زده کونکی و.

په ۲۰۰۷ کې په ورجينياټيک پوهنتون کې يو ۲۳ کلن محصل ناترسه ډزې پيل کړې او په څو لمحو کې يې د ۳۲ محصلينو او استاذانو ژوند واخست ؛دا پېښه ديوې سلسلې بنسټ وګرځېد ،امريکايې بې لارو ځوانانو ته دا يوه نمونه شوه او په ۵ کلونو کې ۱۲نورې داسې پېښې رامنځته شوې چې په هرې پېښې کې په لسګونو کوچنيان غلبيل شول.

په امريکا کې پوهان وايي چې په دې هرې پېښې کې دقاتل ځوان هدف يواځې دخپل وحشي فکر تسکين و، هغه فکر کوم چې ديو نه يو فلم دهمداسې صحنې نه دده دماغو ته راانتقال شوی و.

دامريکا دسنټر فار ډيزيز کنټرول اينډ پريونيشن(سي.ډي.سي)نومې ادارې له لورې په يو خپور شوي راپور کې راغلي چې په امريکا کې هر پنځم ځوان ددماغي خلل ښکار دی،دراپور له مخې دروانې مرضونو ښکار ځوانانو او کوچنيانو په شمېر کې ډېر په تېزۍ زياتوالی روان دی او په امريکا کې د۱۳ نه تر ۲۰ سلنه ځوانان او کوچنيان درواني مرضونو ښکار کېږي.

د(سي.ډي.سي) ددې راپور له مخې دامريکا ځوانانو کې درواني مرضونو دخپرېدا تر ټولو ستر لامل برقي رسنۍ او فلمونه دي ؛ په پرله پسې ډول دجنګونو خبرونه اورېدل او دتشدد نه ډک فلمونه ليدل دذهن دعکس العمل ښکاره کولو سبب ګرځي چې ورو ورو په ډېريشمن بدلېږي او بيا همدا مرض دوحشت نه ډک عمل څرګندولو ته انسان اړباسي ، مثلا دخپل پلار يا مور وژل ،دکوچنيانو يا همزولو سکنجه کول او قتلول.

ديادولو وړ ده چې په کوچنيانو کې درواني مرضونو ذکر شوې سلنه د۲۰۰۵ نه تر ۲۰۱۱پورې دترسره شويوسروېګانواو څېړنو په نتيجه کې معلومه شوېده ؛ په څېړنو کې داهم معلومه شويده چې په امريکايې زياتره ځوانانو کې درواني مرض بيا دځان وژنې سبب ګرځي ځکه خو ځان وژنې شميره ورځ تر بلې ډېرېږي او دا دامريکا په ځوانانو او کوچنيانو کې دمړينې دوهم ستر سبب ګرځېدلی دی.

حقيقت دا دی چې دامريکا دا کوچنيان او نوي ځوانان ډېر د زړه سوي وړ دي ،هغه امريکا چې دټولې نړۍ دقبضه کولو خوبونه ويني پکې کوچنيان دحقيقي شفقت،محبت او اساسي حقوقو نه دمحرومو والي اودامريکايې رسنيوو دبې لارې کونکو پروګرامونوله امله درواني مرضونو ښکار کيږي چې خبره يې تر ځان وژنې رسېږي.

داسې ښکاري چې قدرت اوس امريکا ته دخپل هر عمل يو څه سزا ور کول غواړي ؛ امريکاچې دخپلو پليتو رسنيو له لارې دټولې نړۍ دانسانانو دګمراه کولو هڅې کولې اوس يې همدې رسنيو خپل ځوانان دبې لاريتوب هغه حد ته ورسول چې له علاج نه يې دوئ ټول عاجز دي ، کاش چې امريکايې واکمنان پدې پوه شي چې څوک دنورو کورونه سوځوي يوه ورځ به خپل کور هم داور لمبو کې ويني .

# رمضان فصل نبردهای سرنوشت ساز با شیطان و فرزندان آن

محموداحمدنوید

در حالیکه موسم مبارک رمضان شریف فرا رسیده و مجاهدین جان برکف و سر به سنگران حق علیه باطل ، آمادگی های لازم در جنگ های سرنوشت ساز ، با اشغالگران خارجی و نوکران اجیر داخلی را در نظر می گیرند ؛ دشمنان شکست خورده و بزدل ، رمضان را سپر امن خویش قرار داده و به کرات و مرات به التماس افتیده و با صد خواهش و تمنا از مجاهدین ، انتظار توقف جنگ را دارند ؛ آنها با این بهانه که رمضان ماه مبارک و سراسر خیر و فضل است و نباید در این ایام جنگ و خونریزی صورت بگیرد ؛ طوری وانمود می کنند که انگار فقط آنها قدرشناس رمضان ، و ایام پربرکت آن هستند ؛ در حالیکه فراموش کرده اند جنگ علیه مواضع اشغالگران خارجی و نوکران وطنفروش داخلی ، یکی از بهترین و بزرگترین طاعات و عبادات می باشد ؛ "جهاد" واژه مقدسی است که در مفهوم وسیع آن خیلی از عبادت های دیگر شامل می شوند ؛ دشمنان اسلام و ملت افغانستان (که در این روزها سخت ترین ایام خود را در افغانستان سپری می کنند) به هرچیز به عنوان دستگیره دست می اندازند به این امید که ماشین جنگی مجاهدین را خاموش و یا کند کنند ؛ آنها با استفاده از الفاظ زیبا ، کلمات پاک و سخنانی بظاهر دلسوزانه سعی دارند افکار عامه را نسبت به جهاد مقدس فعلی و مجاهدین برحق ، گمراه ساخته و در واقع با سپر کردن مقدسات جان و مال خود را در امان ، و ظلم و طغیان ، قتل و جنایت ، کشتار بی گناهان و مردم ستمدیده (که توسط عساکر وحشی صفت آنها روزانه رخ می دهد) را مشرعیت ببخشند و امنیت و سلامتی سر خود را تضمین کنند ؛ و الا ، مگر مجاهدین قهرمان کشور با ملت خود می جنگند که به جنگ آنها شوم گفته شود و لازم باشد که در آن تقدس ماه رمضان شریف در نظر گرفته شود ؟؟؟

مگر مجاهدین بخاطر چوکی و منصب می جنگند که باید حرمت ماه های حرام را مد نظر بگیرند ؟

مگر جنگ مجاهدین ، نامی جز "جهاد مقدس" دارد که باید در ماهی خاص ؛ مثل رمضان شریف متوقف بشود ؟

مگر یکجا شدن فعل جهاد با فعل روزه از نگاه شرعی مشکل دارد که لازم شود در رمضان جهاد علیه اشغالگران و مزدوران آنها را ترک کرد ؟

جهاد ، جهاد است مرز زمان و مکان نمی شناسد تا کفار بر سرزمین مسلمانان مسلط هستند جهاد فرض عین می باشد ؛ بی کم و کاست و بدون چون و چرا ؛ و حتی در ماه مبارکی مثل رمضان شریف که ثواب و پاداش هر عمل نیک چند برابر می شود ؛ آیا مگر برتر از عمل جهاد مقدس دیگر عملی هست ؛ آیا جهاد جزو بزرگترین عبادت ها نیست ؟ آیا برداشت تکالیف و سختی ها در راه جهاد از اعظم عبادات به حساب نمی آیند ؟ آیا گام های استوار و ایمان افروز مجاهدین ، در راه اعتلای کلمه الله و اعزاز دین حق ، و آزادی کشور اسیر ، جزو برترین اعمال و پرسودترین کارهای خیر محسوب نمی شوند ؟ آیا شهادت کمال نیست ؟ آیا برترین عبادت ، شهادت مخلصانه در راه رضای حق نیست ؟ آیا رمضان ماه عبادت نیست ؟ پس چه عبادتی برتر و بالاتر از قدم برداشتن در راه عزت دین ، شهادت ، جهاد و جنگیدن با سپاه طاغوتی دشمنان ؟؟؟

شکی نیست این ترفند دشمنان زیرک اسلام مقدس است که برای تحریف افکار عامه و نجات خویش از باتلاق جنگ افغانستان مطرح می کنند ؛ و مثل بمب ، در رسانه ها منفجر می شود ؛ این روزها که ایام ماه مبارک رمضان شروع شده ، حتما به یاری و مدد الله جل جلاله ضربات کفرشکن لشکر حضرت سیدنا خالد بن ولید – رضی الله عنه – علیه سپاه شیطان نیز افزایش پیدا می کنند و فرزندان غیور این سرزمین ، بسی حماسه های بی نظیر و تاریخی خلق خواهند نمود و علی رغم انف دشمنان خارجی و فریب خورده های داخلی "جهادمقدس" پر قوت تر از دیگر ماه ها ادامه پیدا خواهد کرد . ان شاء الله

اینکه "یان کوبیش" نماینده خاص سازمان ملل برای افغانستان ، در مورخه ۱۳۹۲/٤/۱۷هش صراحتا از طرف های درگیر و کنایتا از مجاهدین خواستار توقف جنگ شده و به نقل از رسانه ها گفته : " ... خانواده سازمان ملل متحد در افغانستان فرا رسیدن ماه مبارک رمضان را به تمام مردم افغانستان تبریک می گوید و از تمام طرف های درگیر جنگ می خواهد که به تقدس ماه مبارک رمضان احترام قایل شوند و بگذارند که خانواده های افغان در جریان این ماه به امن و آرامش به عبادات خود ادامه دهند ... " باید در جوابش گفته شود که در افغانستان چیزی به نام جنگ و جود ندارد و اگر منظور شما از جهاد جاری است که همینک توسط فرزندان قهرمان میهن آزادگان جریان دارد ؛ باید بدانید که این جهاد هرگز لحظه ی آرامش برای شما دشمنان متجاوز باقی نمی گذارد و این آرزو را باید باخود بـه گـور ببریـد در حالیکـه ملـت مظلـوم افغانسـتان در موجودیت عساکر و حشی صفت و ادوات جنگی و نظامی شما ، گاهی هم احساس آرامش و امنیت نمی کنند و بدترین ایام تاریخ خود را سپری می کنند ، با این حال شما با بی شرمی از فرزندان دلاوردل کشور می خواهید ، سلاح شان را به زمین گذاشته و به حرمت ماه مبارک رمضان ، مثلا جنگ را متوقف کنند ؛ شما از حرمت می گوئید ؟ از شما می پرسیم :کدام حرمت ؟ شما اگر معنی حرمـت و انسـانیت را می دانسـتید و می فهمیدید و اگر واقعا خیرخواه و دلسوز ملت افغانستان بودید ؛ اینهمه لشکرکشی نمی کردید و به اشغال خاک این مردم و کشتار ساکنین آن نمی پرداختید و یا حداقل این جنگ را پایان می دادید ؛ لازم نیست شما حرمت را برای این مردم ترجمه کنید ؛ چون این مردم خود معنی حرمت را می دانند که حرمت ، شرف ، حیثیت و هستی آنها در احیای جهاد مقدس و در گرو آن ، و فعال بودن این پروژه مقدس ، نهادینه شده و خود با تدوام جهاد ، حرمت و عزت از دست رفته خویش را از دست شما متجاوزین به حول و قوه الهی با افتخار و اقتدار ، بزودی باز پس خواهند گرفت .

کرزی حاکم تحمیلی و رئیس نظام فاسد و دست نشانده نیز در تایید سخن اربابان خود پیامی در مورخه ۱۳۹۲/٤/۱۸هش به مناسبت ماه مبارک رمضان به مجاهدین ارسال نموده که عینا عکس سخنان فرمایشی باداران وی می باشد ؛ به نقل از منابع خبری آمده : " ... (کرزی) یک بار دیگر از طالبان خواست، جنگ را پایان داده و به مذاکرات صلح حاضر شوند ... از طالبان خواست به کشتار و اذیت مردم افغانستان پایان دهند ... درین پیام خود از طالبان همچنان خواست، خود را از گرو بیگانه ها برهانند ... " این سخنان پراکنده مردی است که دیگر به پایان راه رسیده است ، او که در مدت بیش از دوازده سال ، خدمتکاری بی چون و چرا ، سرسپرده ی بی قید و شرط ، و غلامی تمام عیـار ، بـرای دشمنـان خارجی بوده است ؛ اکنون با ترس و وحشت ؛ مثل همیشه و عادت غلامان و غلامزادگان ، از موضع ضعف با التماس و تضرع از مجاهدین ، می خواهد که دست از سر کچل وی برداشته و بگذارند کشور و ملت عزیز افغانستان در آتش ظلم و اشغال دشمنان ددمنش همچنان بسوزند ، و کاری به کار کسی نداشته باشند ، او که با وطنفروشی ، در طی بیش از یک دهه ، همه ارزشهای ملت تاریخی افغانستان را در نوکری به غرب ، بر باد داده است ، حال با اصرار تمام ، از مجاهدین ، می خواهد دست از جهاد برداشته و به جنایتکاران خارجی فرصت جنایت پیشگی بدهند و در حالیکه روزانه مردم بی دفاع و بی گناه کشور هدف بمباردمان های هوایی و زمینی دشمنان خارجی و عساکر اجیر داخلی قرار می گیرند و خود از نوک پا تا فرق سر در همه چیز به غرب طغیانگر و متجاوزین خارجی و ابسته اند ؛ با بی شرمی تمام به مجاهدین ، اتهامات ناروا و نادرست می زند ؛ اما که نه کرزی و نه اربابان خارجی او ، نه حرمت مقدسات می فهمند و نه حرمت انسان ، و همه این سخن ها و پیام ها در مناسبت های خاص فقط و فقط بخاطر کتمان شکست ، و حفظ روحیه شکسته شده نظامیان خارجی و داخلی ، و از همه مهمتر برای کتمان واقعیت های جنگ موجود در افغانستان بوده و در مسیر تحریف افکار عامه ، پلان گذاری شده اند که به هر حال با مقاومت ها ، فداکاری ها ، حماسه آفرینی ها و دلاوردلی های مجاهدین همیشه جاوید افغانستان و اجرای پلان های منظم و تاکتیک های دقیق و حساب شده نظامی ، تمام نقشه های شوم دشمنان نقش برآب شده و جهاد مقدس بر همان حدت و شدت سابق و بلکه بهتر و بیشتر از قبل در ایام خجسته رمضان شریف نیز ، همچنان ادامه می یابد ...

گرچه تحلیل گران منافع غرب در مورد فعالیت های مجاهدین و سخن سخنوران کافردوست و اسلام دشمن در آسـتانه مـاه مبـارک رمضان ، بسیار زیاد است ؛ لکن ما به ذکر دو مورد فوق ؛ به مثابه مشتی نمونه خروار بسنده می کنیم ؛ و امیـدواریم رمضـان امسـال با روزه روزداران و دعاهای خاص در مواقع سحور و افطار ، بهترین پشتیبانی ها از سرسپردگان راه اسلام و مجاهدین غیرتمند کشور بشوند و شاهد رمضانی سرشار از فتح و پیروزی و خبرهای خوشحال کننده از سنگرهای داغ جهادی باشیم و نیز شکست قطعی شیطان بزرگ و فرزنـدان او را با دو سلاح شیطان شکن ؛ روزه و جهاد همانند تاریخ پر افتخار دیروز خود به تکرار بگیریم . انشاء الله !